# د افغانستان اساسي قانون

# قانون اساسی افغانستان

په رسمي جريده كې د خپريدو نېټه: د ۱۳۸۲ هـ . ش كال د سلواغې د مياشتې (۸)
پرله پسې گڼه (۸۱۸)

## د افغانستان د اساسي قانون د توشيح په باب د افغانستان د انتقالي اسلامي دولت د رئـيس فرمان

ګڼه: (۱۰۳)

نېټه : ۱۳۸۲/۱۱/۶

د لوی خدای په نامـه او د افغـانستان د نجيبو خلکو د نيکمرغۍ په هيله ، نـوی اساسـي قـانون چـې د ۱۳۸۲ هجـري لمريـز کـال د لينـدۍ لـه ۲۲ څخه د مرغـومې تـر ۱۴ نېټـې پـورې پـه کابل کې د جوړې شوي لويې جرګې لخوا په ۱۲ فصلونو ۱۶۲ مـادو کې د رأيـو پـه اتفاق تصويب شو، توشيح او انفاذيې اعـلاموم.

د متعا ل خدای له دربار څخه هيله کوم تـر څـو دغـه اساسي قـانون د اسلام د مبـين ديـن د حکمونـو پـه رعايـت سره دملـي يـووالي د ټينګښـت ، د دموکراسۍ د هدفـونو د تحقـق د مدني ټولنې د جـوړ ولو ، د ټولنيزې اقتصـادي ، اجتمـاعي ، سياسـي او فرهنګي سوکالۍ ، د دولت او دهېواد

## فرمان رئيس دولت انتقالی اسلامی افغانستان در مورد توشيح قانون اساسی افغانستان

شماره: (۱۰۳)

تاريخ: ۱۳۸۲/۱۱/۶

بنـام خـداوند بـزرگ و بـه آرزوی سعادت مردم نـجيب و صلـح دوسـت افغـانسـتـان، قـانـون اساسی جديـد را کـه توسط لـويه جـرگـهٔ تـاريخـی ۲۲ قـوس الـی ۱۴ جـدی ۱۳۸۲ هجری شمسی، مـنعقدهٔ شهر کابـل در ۱۲ فصل و ۱۶۲ مـاده بـه اتفـاق آرا تصـويب گرديد ، توشيح و انفـاذ آنرا اعلام می دارم.

از بـارگـاه خداونـد متـعال استدعا دارم تـا ايـن قـانون اساسی بـا رعايـت احکـام ديـن مبـين اسـلام، تحکـيم وحـدت ملـی، تـحقق اهداف دمـوکراسـی، اعمار جامعهٔ مدنی، رفـاه همگانی اقتصادی، اجتماعی، سـياسـی و فـرهنگـی، مـشعل راه دولـت و مـردم کـشور

د خلکــو د لارې ډيــوه شــي ، ســوله ، برابري او وروروليي د افغانستان د ملت ترمنځ تأمين کړي.

**و من الله توفيق**

**حامد کرزی**

**د افغانستان د انتقالي اسلامي دولت رئيس**

**۶/ سلواغه/ ۱۳۸۲ هجري شمسي**
**د کابل ښار**

گـــــرديده، صـــــلح، بــرابــــری و بــرادری را بـــين ملــت افغانســتان تأمين نمايد.

**و من الله توفيق**

**حامد کرزی**

**رئيس دولت انتقالی اسلامی افغانستان**

**۶/ دلو ۱۳۸۲/ هــجری شمســی**
**شهر کابل**

## د افغانستان د اساسي قانون فهرست



## فهرست قانون اساسی افغانستان

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين و الصلوة و السلام علي سيد الانبياء و المرسلين محمد (ﷺ) و على آله و اصحابه اجمعين.

## سريزه

**موږ د افغانستان خلکو:**

■ د لوی خدای (جل جلاله) پرسپيڅلي ذات په ټينګ ايمان ، د حق تعالي په مشيت پر توکل او د اسلام په سپيڅلي دين پر اعتقاد ؛

■ د تيرو بې عدالتيو او ناخوالو په درک او زموږ پر هېواد راغليو بې شميره مصيبتونو ته په پاملرنه؛

■ د افغانستان د ټولو خلکو د سربښندنو، تاريخي مبارزو، جهاد او بر حق مقاومت د ستايلو او د وطن د آزادۍ د لارې د شهيدانو لوړ مقام ته په ارزښت ورکولو؛

■ په دې درک سره چې واحد او يو موټی افغانستان ددې خاورې په ټولو قومونو او خلکو اړه لري؛

■ د ملګرو ملتو د منشور په رعايت او د بشر دحقوقو نړيوالې

## مقدمه

**ما مردم افغانستان:**

■ با ايمان راسخ به ذات پاک خداوند (جل جلاله) و توکل به مشيت حق تعالى و اعتقاد به دين مقدس اسلام؛

■ با درک بی عدالتی ها و نابسامانی های گذشته و مصايب بی شماری که بر کشور ما وارد آمده است؛

■ با تقدير از فداکاری ها ، مبارزات تاريخی، جهاد و مقاومت بر حق تمام مردم افغانستان و ارج گذاری به مقام والای شهدای راه آزادی کشور؛

■ با درک اين که افغانستان واحد و يکپارچه به همه اقوام و مردم اين سرزمين تعلق دارد ؛

■ با رعايت منشور ملل متحد و با احترام به اعلاميهٔ

اعلاميې ته په درناوي؛

■ د ملي وحدت د ټينګښت او د هېواد داستقلال، ملي حاکميت او ځمکنۍ بشپړتيا د ساتنې په منظور؛

■ د خلکو پر اراده او د موکراسۍ ولاړ نظام د تأسيس لپاره؛

■ له ظلم، استبداد، تبعيض او تاوتريخوالي پاکې، پرقانونيت، اجتماعي عدالت، د انساني حقوقو او کرامت پر خوندي تا به ولاړې مدني ټولنې د جوړولو او دخلکو د اساسي حقوقو او آزاديو د تأمين په منظور؛

■ د هېواد د سياسي، اجتماعي، اقتصادي او دفاعي بنسټونو د پياوړي کولو لپاره؛

■ ددې خاورې ټولو او سيدونکيو ته د يو هوسا ژوندانه او د ژوند د سالم چاپيريال د تأمين په منظور؛

■ او بالاخره په نړيواله کورنۍ کې د افغانستان لپاره د وړ ځاى د تثبيت په منظور؛

د هېواد تاريخي، فرهنګي او ټولنيزو واقعيتونو او د زمان له غوښتنو سره سم مو دغه اساسي قانون

جهانی حقوق بشر؛

■ به منظور تحکیم وحدت ملی و حراست از استقلال، حاکمیت ملی و تمامیت ارضی کشور؛

■ به منظور تأسیس نظام متکی بر اراده مردم و دموکراسی؛

■ به منظور ایجاد جامعهٔ مدنی عاری از ظلم، استبداد، تبعیض و خشونت و مبتنی بر قانونمندی، عدالت اجتماعی، حفظ کرامت و حقوق انسانی و تأمین آزادی ها و حقوق اساسی مردم؛

■ به منظور تقویت بنیادهای سیاسی، اجتماعی، اقتصادی و دفاعی کشور؛

■ به منظور تأمین زند گی مرفه و محیط زیست سالم برای همه ساکنان این سرزمین؛

■ و سرانجام، به منظور تثبیت جایگاه شایستهٔ افغانستان در خانوادهٔ بین المللی؛

این قانون اساسی را مطابق به واقعیت های تاریخی، فرهنگی و اجتماعی کشور و مقتضیات عصر،

د خپلو استازيــو لـه لارې د يــو زرو دري ســـوه دوه اتيا يم لمريز هجري كـال د مرغـومي د مياشـتې پـه څوارلسمه نيــتــه د كابــل پـه ښار كې تصويب كړ.

## لومړى فصل
## دولت

**لومړۍ ماده:**
افـغانــستان ، خپلواک، واحد ، او نـه بـيلـيدونكـى اسلامــي جــمهوري دولـت دى.

**دوه يمه ماده:**
د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت دين، د اسلام سپېڅلى دين دى.

د نورو اديانـو پيـروان د خپـل ديـن پـه پـيروۍ او د خپلو ديـني مراسمـو پـه اجـرأ كــې د قــانون د حكمونـــو پــه حدودوكې آزاد دي.

**درېيمه ماده:**
پـه افغانسـتان كـې هـېڅ قـانون نشـي كـولاى چې د اسـلام دسپېڅلي ديـن د معتقداتو او احكامو مخالف وي.

**څلورمه ماده:**
پـه افغانسـتان كې ملي حاكميـت پـه ملت پورې اړه لري چې په مستقيم ډول

از طريــق نمايـنـد گان منتخــب خــود درلويــه جرگـۀ مـؤرخ چهـاردهم جـدى ســال يــک هــزار و ســه صـد و هشـتاد و دو هجـرى شمسـى در شـهر كابل تصويب كرديم.

## فصل اول
## دولت

**مادۀ اول:**
افـغـانسـتــان، دولـــت جمهـــورى اسلامى، مسـتقل، واحد و غير قابل تجزيه مى باشد.

**مادۀ دوم:**
ديـــن دولـــت جمهـــورى اســـلامى افغانسـتان، دين مقدس اسلام است.

پيـــروان ســـاير اديـان در پيـروى از ديـــن و اجــراى مراســـم دينـــى شـــان در حــدود احـكـام قـــانــون آزاد مـى باشـند.

**مادۀ سوم:**
در افغــانستان هــيچ قـانـون نمـى تـواند مخـالف معـــتقدات و احــكام ديـــن مــقدس اسلام باشد.

**مادۀ چهارم:**
حــاكميت مـلـى در افـغـانـسـتـان بـه مـلــت تعـلــق دارد كــه بـــه طـــور

يې په خپله يا يې د خپلو استازيو له لارې عملي کوي.

مستقیم یا توسط نمایندگان خود آن را اعمال می کند.

د افغانستان ملت عبارت دی له هغو ټولو افرادو څخه چې د افغانستان تابعيت ولري.

ملت افغانستان عبارت است از تمام افرادی که تابعیت افغانستان را دارا باشند.

د افغانستان ملت له پښتون، تاجک، هزاره، ازبک، ترکمن، بلوچ، پشه يې، نورستاني، ايماق، عرب، قرغيز، قزلباش، گوجر، براهوي او نورو قومونو څخه جوړ دی.

ملت افغانستان متشکل از اقوام پشتون، تاجک، هزاره، ازبک، ترکمن، بلوچ، پشه یی، نورستانی، ایماق، عرب، قرغیز، قزلباش، گوجر، براهوی وسایر اقوام می باشد.

د افغان کلمه د افغانستان د ملت پر هر فرد اطلاق کيږي.

برهر فرد از افراد ملت افغانستان کلمۀ افغان اطلاق می شود.

د ملت هيڅ يو فرد د افغانستان له تابعيت څخه نه محروميږي.

هیچ فرد از افراد ملت از تابعیت افغانستان محروم نمی گردد.

په تابعيت او پناه ورکولو پورې مربوطې چارې د قانون له لیارې تنظيميږي.

امور مربوط به تابعیت و پناهندگی توسط قانون تنظیم می گردد.

**پنځمه ماده:**
د دې اساسي قانون او نورو قوانينو د حکمونو تطبيق، له استقلال، ملي واکمنۍ او ځمکنۍ بشپړتيا څخه دفاع او د هېواد د امنيت او دفاعي قابليت تأمين، د دولت له اساسي وظايفو څخه دي.

**مادۀ پنجم:**
تطبیق احکام این قانون اساسی و سایر قوانین، دفاع از استقلال، حاکمیت ملی و تمامیت ارضی و تأمین امنیت و قابلیت دفاعی کشور از وظایف اساسی دولت می باشد.

شپږمه ماده:
دولت ، د انساني کرامت په ساتلو، بشري حقوقو د ملاتړ، د دموکراسۍ د تحقق، ملي وحدت د تأمين، د ټولو قومونو او قبايلو ترمنځ د برابرۍ او د هېواد په ټولو سيموکې د متوازنې پراختيا او ټولنيز عدالت پر بنسټ ديوې هوسا او پرمختللې ټولنې په جوړولو مکلف دی.

اوومه ماده:
دولت د ملګرو ملتونو د منشور، د بين الدول معاهدو، د نړيوالو ميثاقونو چې افغانستان له هغو سره تړاو لري او د بشري حقوقو د نړيوالې اعلاميې رعايت کوي.

دولت د هر راز تروريستي اعمالو، د مخدره موادو د کرلو او قاچاق او د مسکراتو د توليد او استعمال مخنيوی کوي.

اتمه ماده:
دولت د هېواد خارجي سياست دخپلواکۍ، ملي ګټو او ځمکنۍ بشپړتيا په ساتلو، نه مداخلې، ښه ګاونډيتوب ، متقابل احترام او د حقوقو د برابرۍ پر بنسټ تنظيموي.

مادۀ ششم:
دولت به ايجاد يک جامعه مرفه و مترقی بر اساس عدالت اجتماعی، حفظ کرامت انسانی، حمايت حقوق بشر ، تحقق دموکراسی، تأمين وحدت ملی، برابری بين همه اقوام و قبايل و انکشاف متوازن در همه مناطق کشور مکلف می باشد.

مادۀ هفتم:
دولت منشور ملل متحد ، معاهدات بين الدول، ميثاق های بين المللی که افغانستان به آن ملحق شده است و اعلاميۀ جهانی حقوق بشر را رعايت می کند.

دولت از هر نوع اعمال تروريستی، زرع و قاچاق مواد مخدر و توليد و استعمال مسکرات جلوگيری می کند.

مادۀ هشتم:
دولت سياست خارجی کشور را بر مبنای حفظ استقلال، منافع ملی و تماميت ارضی و عدم مداخله، حسن همجواری، احترام متقابل و تساوی حقوق تنظيم می نمايد.

**نهمه ماده:**
کانــونه او نــورې تـر ځمکې لاندې زیرمــې او لرغونــي آثــار د دولــت ملکیت دي.

د دولت د ملکیتونو ساتنه او اداره او لــه طبیعــي زیرمــو او نــورو عامــه ملکیتونو څخه د سمې استفادې ډول د قانون له لیارې تنظیمېږي.

**لسمه ماده:**
دولـت ، خصوصـي پـانګې اچـونې او خصوصي تشبثات د بازار د اقتصاد د نظام پربنسټ دقانون له حکمونو سره سم هڅوي ، ملاتړېې کوي او مصؤنیت یې تضمینوي.

**یوولسمه ماده:**
په کورنۍ او بهرنۍ سوداګرۍ پورې تړلې چارې، د هېواد لـه اقتصادي غوښتنو او دخلکو له ګټهو سره سمې د قانون له لیارې تنظیمېږي.

**دولسمه ماده:**
د افغانستان بانک، د دولت مرکزي او مستقل بانک دی.

د پیسـو نشـرول، د هېـواد د پـولي سیاسـت طـرح او تطبیـق، د قـانون لـه حکمونــو ســره ســم د مرکــزي بانــک صلاحیت دی.

**مادۀ نهم:**
معـــادن و ســایــر منـابــع زیـــر زمینــی و آثــار باســتــانــی ملکیــت دولــت می باشند.

حـفـاظــت و اداره امــلاک دولــت و طــرز استـفــاده درســت از منــابــع طبیعــی و ســایــر امــلاک عــامــه توسط قـانـون تنظیم می گردد.

**مادۀ دهم:**
دولـت، سـرمایه گزاریهـا و تشـبثات خصوصی را مبتنی بر نظام اقتصاد بــازار، مطـــابق بـه احکـام قـــانون، تشویق، حــمایـت و مصــؤنیـت آنهـا را تضمین می نماید.

**مادۀ یازدهم:**
امـور مـربــوط بــه تجــارت داخلـی و خـــارجی، مطـــابق بـــه ایجابـــات اقتصـــادی کشــور و مصــالح مــردم ، تـوسـط قـانـون تنظیـم میگـردد.

**مادۀ دوازدهم:**
دافغانستان بانک، بانک مرکزی دولت و مستقل می باشد.

نــشـر پول و طرح و تـطبیـق سیاست پـولـــی کشــور، مـطـابـق بـه احـکام قـــانــون، از صـــلاحیـــت بـانــک مرکزی مــی باشد.

مرکزي بانک د پیسو د چاپ په برخه کې د ولسي جرگې له اقتصادي کمیسیون سره مشوره کوي.

ددې بانک تشکیل او د کار ډول د قانون له لیارې تنظیمېږي.

**دیارلسمه ماده:**

دولت د صنایعو د پراختیا، د تولید د ودې او د خلکو د ژوند د سطحې د لوړتیا او د کسبگرو د فعالیتونو د ملاتړ لپاره اغېزمن پروگرامونه طرح او تطبیقوي.

**څوار لسمه ماده:**

دولت د کرنې او مالدارۍ د پراختیا، د بزگرانو او مالدارانو د اقتصادي ټولنیزو او د ژوند د شرایطو د ښه کولو او د کوچیانو د میشتولو او د دوی د ژوند د سمون لپاره د دولت د مالي توان په حدودوکې اغېزمن پروگرامونه طرح او تطبیقوي.

دولت مستحقو اتباعو ته د استوگنځای د برابرولو په منظور او دعامه ملکیتونو د وېش لپاره، د قانون له حکمونو سره سم او د مالي امکاناتو په حدود کې لازم تدبیرونه نیسي.

بانک مرکزی در مورد چاپ پول با کمیسیون اقتصادی ولسی جرگه مشوره می نماید.

تشکیل و طرز فعالیت این بانک توسط قانون تنظیم می شود.

**مادۀ سیزدهم:**

دولت برای انکشاف صنایع، رشد تولید، ارتقای سطح زندگی مردم و حمایت از فعالیتهای پیشه وران، پروگرامهای مؤثر طرح و تطبیق می نماید.

**مادۀ چهاردهم:**

دولت برای انکشاف زراعت و مالداری، بهبود شرایط اقتصادی، اجتماعی و معیشتی دهقانان و مالدارن و اسکان و بهبود زندگی کوچیان، در حدود بنیه مالی دولت، پروگرامهای مؤثر طرح و تطبیق می نماید.

دولت به منظور تهیۀ مسکن و توزیع ملکیتهای عامه برای اتباع مستحق، مطابق به احکام قانون و در حدود امکانات مالی، تدابیر لازم اتخاذ می نماید.

**پنځلسمه ماده:**
دولت مکلف دی چې د ځنګلونو او د چاپيريال د خوندي کولو ښه والي لپاره لازم تدبيرونه ونيسي.

**مادهٔ پانزدهم:**
دولت مکلف است در مورد حفظ و بهبود جنگلات و محیط زیست تدابیر لازم اتخاذ نماید.

**شپاړسمه ماده:**
د پښتو، دري، ازبکي، ترکمني، بلوڅي، پشه يي، نورستاني، پاميري او په هېواد کې د نورو مروجو ژبو له جملې څخه پښتو او دري د دولت رسمي ژبې دي.

**مادهٔ شانزدهم:**
از جمله زبانهای پشتو، دری، ازبکی، ترکمنی، بلوچی، پشه یی، نورستانی، پامیری و سایر زبانهای رایج در کشور, پشتو و دری زبانهای رسمی دولت می باشند.

په هغو سيمو کې چې د خلکو اکثريت له ازبکي، ترکمني، بلوڅي، پشه يي، نورستاني او يا پاميري ژبو څخه پر يوې خبرې کوي له پښتو او دري سربېره هغه ژبه دريمه رسمي ژبه ده، د تطبيق ډول يې د قانون له لياري تنظيمېږي.

در مناطقیکه اکثریت مردم به یکی از زبانهای ازبکی، ترکمنی، پشه یی، نورستانی، بلوچی و یا پامیری تکلم می نمایند آن زبان علاوه بر پشتو و دری به حیث زبان سوم رسمی می باشد و نحوهٔ تطبیق آن توسط قانون تنظیم می گردد.

دولت د افغانستان د ټولو ژبو د پياوړتيا او پراختيا لپاره اغېزمن پروګرامونه طرح او تطبيقوي.

دولت برای تقویت و انکشاف همه زبانهای افغانستان پروگرامهای مؤثر طرح و تطبیق می نماید.

په هېواد کې د مطبوعاتو، راډيو او تلويزيون خپرونې د هېواد پر ټولو مروجو ژبو آزادې دي.

نشر مطبوعات و رسانه های گروهی به تمام زبانهای رایج در کشور آزاد می باشد.

په هېواد کې موجود ملي، علمي او اداري مصطلحات ساتل کېږي.

مصطلحات علمی و اداری ملی موجود در کشور حفظ می گردد.

**اوه لسمه ماده:**
دولت په بیلابیلو سطحو کې د معارف د ودې او د دیني زده‌کړو د پراختیا، د جوماتونو، مدرسو او دیني مرکزونو د وضعې د ښه والي او تنظیم لپاره لازم تدبیرونه نیسي.

**اتلسمه ماده:**
د هېواد د تقویم مبدأ د پیغمبر اکرم (ﷺ) پر هجرت ولاړ دی.

د دولتي ادارو د کار بنسټ هجري لمریز کال دی.

د جمعې ورځې، د اسد ۲۸ او د ثور ۸ عمومي رخصتۍ دي، نورې رخصتۍ د قانون له لیارې تنظیمېږي.

**نولسمه ماده:**
د افغانستان بیرغ له: دریو تور، سور او زرغون رنګه ټوټو څخه جوړ دی. درې واړه ټوټې په مساوي ډول له کینۍ نه ښي لور ته په عمودي ډول سره پرتې وي او د هر رنګ سور د هغه د اوږدو نیمایي دی چې په منځ کې یې د افغانستان ملي نښان ځای پرځای شوی دی.

دافغانستان د دولت ملي نښان له سپین رنګي محراب او منبر څخه جوړ دی چې په دوو څنډو کې یې دوه

**مادهٔ هفدهم:**
دولت برای ارتقای معارف در همه سطوح، انکشاف تعلیمات دینی، تنظیم و بهبود وضع مساجد، مدارس و مراکز دینی تدابیر لازم اتخاذ می نماید.

**مادهٔ هجدهم:**
مبدأ تقویم کشور بر هجرت پیغمبر اکرم (ﷺ) اسsتوار است.

مبنای کار ادارات دولتی تقویم هجری شمسی می باشد.

روزهای جمعه، ۲۸ اسد و ۸ ثور تعطیل عمومی است، سایر رخصتی ها توسط قانون تنظیم می گردد.

**مادهٔ نزدهم:**
بیرق افغانستان مرکب است از: سه قطعه با رنگهای سیاه، سرخ و سبز که به صورت عمودی، به اندازه های مساوی، از چپ به راست، در کنار هم واقع شده، عرض هر رنگ برابر نصف طول آن است و در وسط آن نشان ملی افغانستان قرار دارد.

نشان ملی افغانستان عبارت از محراب و منبر به رنگ سفید می باشد که در دو گوشه آن دو بیرق و

بیرغونه او د منځ په برنۍ برخه کې یې د لااله الاالله محمد رسول الله مبارکه کلمه او الله اکبر او د راختونکي لمر وړانګې او په لاندنۍ برخه کې یې د ۱۲۹۸ هجري شمسي تاریخ او د افغانستان کلمه راغلي چې له دوو خواوو څخه دغنمو وږي پري راګرځول شوي دي.

له بیرغ او ملي نښان څخه د استفادې څرنګوالی د قانون له لیارې تنظیمیږي.

**شلمه ماده:**
د افغانستان ملي سرود په پښتو ژبه دی، الله اکبر او دافغانستان د قومونو نومونه به پکې راځي.

**یوویشتمه ماده:**
د افغانستان پایتخت د کابل ښار دی.

## دوه یم فصل
## داتباعو اساسي حقوق او وجایب

**دوه ویشتمه ماده:**
د افغانستان د اتباعو ترمنځ هر راز تبعیض او امتیاز منع دی.

دافغانستان اتباع ښځې او نارینه د قانون په وړاندې مساوي حقوق او وجایب لري.

در وسط آن در قسمت فوقانی، کلمه مبارک لااله الاالله محمد رسول الله و الله اکبر و اشعهٔ خورشید در حال طلوع و در قسمت تحتانی آن تاریخ ۱۲۹۸ هجری شمسی و کلمه افغانستان، جا داشته و از دو طرف با خوشه های گندم احاطه شده است.

طرز استفاده از بیرق و نشان ملی توسط قانون تنظیم می گردد.

**مادهٔ بیستم:**
سرود ملی افغانستان به زبان پشتو و با ذکر الله اکبر و نام اقوام افغانستان می باشد.

**مادهٔ بیست و یکم:**
پایتخت افغانستان شهر کابل می باشد.

## فصل دوم
## حقوق اساسی و وجایب اتباع

**مادهٔ بیست و دوم:**
هر نوع تبعیض و امتیاز بین اتباع افغانستان ممنوع است.

اتباع افغانستان اعم از زن و مرد در برابر قانون دارای حقوق و وجایب مساوی می باشند.

**در ويشتمه ماده:**
ژوند د خدای (ﷻ) بخښنه او د انسان طبيعي حق دی، هيڅوک له قانوني مجوزه پرته له دې حقه بې برخې کېدای نشي.

**ځليرويشتمه ماده:**
آزادي د انسان طبيعي حق دی. دا حق د نورو له آزادۍ او له عامه مصالحو پرته چې د قانون له لیارې تنظیمېږي حدودنه لري.

د انسان آزادي او کرامت له تېري خوندي دی.

دولت د انسان د آزادۍ او کرامت په ساتنه او درناوي مکلف دی.

**پنځه ويشتمه ماده:**
د ذمې برائت اصلي حالت دی.

ترهغې چې د باصلاحيته محکمې په قطعي حکم متهم محکوم عليه ثابت نه شي، بې ګناه ګڼل کېږي.

**شپږ ويشتمه ماده:**
جرم يو شخصي عمل دی.

د متهم تعقيبول، نيول يا توقيفول او پر هغه باندې د جزاء تطبيق بل هيچاته سرايت نه کوي.

**مادهٔ بيست و سوم:**
زندگی موهبت الهی و حق طبيعی انسان است، هيچ شخص بدون مجوز قانونی از اين حق محروم نمی گردد.

**مادهٔ بيست و چهارم:**
آزادی حق طبيعی انسان است. اين حق جز آزادی ديگران و مصالح عامه که توسط قانون تنظيم می گردد، حدودی ندارد.

آزادی و کرامت انسان از تعرض مصؤن است.

دولت به احترام و حمايت آزادی و کرامت انسان مکلف می باشد.

**مادهٔ بيست و پنجم:**
برائت ذمه حالت اصلی است.

متهم تا وقتی که به حکم قطعی محکمه با صلاحيت محکوم عليه قرار نگيرد، بی گناه شناخته می شود.

**مادهٔ بيست و ششم:**
جرم يک عمل شخصی است.

تعقيب، گرفتاری يا توقيف متهم و تطبيق جزا بر او به شخص ديگری سرايت نمی کند.

**اوه ویشتمه ماده:**
هیڅ یو عمل جرم نه ګڼل کېږي خو دهغه قانون له مخې چې د جرم تر ارتکاب د مخه نافذ شوی وي.

هیڅوک د قانون له حکمونه پرته تعقیبیدای، نیول کیدای او یا توقیفېدای نه شي.

هیچاته سزا نشي ورکول کیدای مګر، د با صلاحیته محکمې په حکم او د هغه قانون له احکامو سره سم چې د اتهام وړ فعل تر ارتکابه مخکې نافذ شوی وي.

**اته ویشتمه ماده:**
د افغانستان هیڅ یو تبعه په جرم باندې د متهم کیدو له امله، بهرني دولت ته نه سپارل کېږي، مګر د ورته معاملې او د هغو بین الدول تړونونو له مخې چې افغانستان ورسره تړاو لري.

هیڅ افغان د تابعیت په سلبېدو او په افغانستان کې دننه یا بهر په شړل کېدو نه محکومېږي.

**نهه ویشتمه ماده:**
د انسان تعذیب منع دی.

هیڅوک نه شي کولای چې له بل

**مادۀ بیست و هفتم:**
هیچ عملی جرم شمرده نمی شود مگر به حکم قانونی که قبل از ارتکاب آن نافذ گردیده باشد.

هیچ شخص را نمی توان تعقیب، گرفتار و یا توقیف نمود مگر بر طبق احکام قانون.

هیچ شخص را نمی توان مجازات نمود مگر به حکم محکمۀ با صلاحیت و مطابق به احکام قانونی که قبل از ارتکاب فعل مورد اتهام نافذ گردیده باشد.

**مادۀ بیست و هشتم:**
هیچ یک از اتباع افغانستان به علت اتهام به جرم، به دولت خارجی سپرده نمی شود مگر بر اساس معامله بالمثل و پیمان های بین الدول که افغانستان به آن پیوسته باشد.

هیچ افغان به سلب تابعیت و یا تبعید در داخل یا خارج افغانستان محکوم نمی شود.

**مادۀ بیست و نهم:**
تعذیب انسان ممنوع است.

هیچ شخص نمی تواند حتی

شخص څخه حتی د حقایقو د ترلاسه کولو لپاره که څه هم تر تعقیب، نیونې یا توقیف لاندې وي او یا په جزا محکوم وي، د هغه د تعذیب لپاره اقدام وکړي یا یې د تعذیب امر ورکړي.

د انساني کرامت مخالفې جزاء ټاکل منع دي.

**د پرشمه ماده:**
له متهم یا بل شخص څخه په زور تر لاسه شوې څرګندونې، اقرار یا شهادت اعتبار نه لري.

په جرم اقرار د متهم هغه اعتراف ته وایي چې په بشپړه خوښه او د عقلي روغتیا په حالت کې یې د با صلاحیته محکمې په وړاندې کړی وي.

**یود پرشمه ماده:**
هر څوک کولای شي چې له نیول کېدو سره سم له ځانه د اتهام دلیرې کولو او یا د حق د ثابتولو لپاره مدافع وکیل و ټاکي.

متهم حق لري چې له نیولو سره سم له منسوب اتهامه ځان خبر کړي او د هغې مودې دننه چې قانون یې ټاکي، محکمه کې حاضر شي.

به مقصد کشف حقایق از شخص دیگر، اگر چه تحت تعقیب، گرفتاری یا توقیف و یا محکوم به جزا باشد، به تعذیب او اقدام کند یا امر بدهد.

تعیین جزایی که مخالف کرامت انسانی باشد، ممنوع است.

**مادهٔ سی ام:**
اظهار، اقرار و شهادتی که از متهم یا شخص دیگری به وسیله اکراه به دست آورده شود، اعتبار ندارد.

اقرار به جرم عبارت است از اعتراف متهم با رضایت کامل و در حالت صحت عقل، در حضور محکمهٔ با صلاحیت.

**مادهٔ سی و یکم:**
هر شخص می تواند برای دفع اتهام به مجرد گرفتاری و یا برای اثبات حق خود، وکیل مدافع تعیین کند.

متهم حق دارد به مجرد گرفتاری، از اتهام منسوب اطلاع یابد و در داخل میعادی که قانون تعیین می کند در محکمه حاضر گردد.

دولت په جنايي پيښو كې د بېوزلي متهم لپاره مدافع وكيل ټاكي.

د متهم او د هغه د وكيل تر منځ مكالمات، مراسلات او مخابرات له هر ډول تعرض څخه خوندي دي.

د مدافع وكيلانو وظايف او واكونه د قانون له لياري تنظيمېږي.

**دوه دېرشمه ماده:**
پور د پوروړي د آزادۍ د سلبيدو يا محدودېدو سبب كيداى نشي.

د پور د بيرته اخيستلو لارې چارې او وسايل د قانون له لياري تنظيمېږي.

**دري دېر شمه ماده:**
د افغانستان اتباع د انتخابولو او د انتخابېدلو حق لري.

له دې حق څخه د ګټې اخيستو شرايط اولارې د قانون له لياري تنظيمېږي.

**څلور دېرشمه ماده:**
د بيان آزادي له تيري څخه خوندي ده.

هر افغان حق لري چې خپل فكر د وينا، ليكنې، انځور او يا نورو وسيلو له لارې، په دې اساسي قانون كې د راغلو حكمونو په

دولت در قضاياى جنايى براى متهم بى بضاعت وكيل مدافع تعيين مى نمايد.

محرميت مكالمات، مراسلات و مخابرات بين متهم و وكيل آن، از هر نوع تعرض مصؤن مى باشد.

وظايف و صلاحيت هاى وكلاى مدافع توسط قانون تنظيم مى گردد.

**مادۀ سى و دوم:**
مديون بودن شخص موجب سلب يا محدود شدن آزادى وى نمى شود.

طرز و وسايل تحصيل دين توسط قانون تنظيم ميگردد.

**مادۀ سى و سوم:**
اتباع افغانستان حق انتخاب كردن و انتخاب شدن را دارا مى باشند.

شرايط و طرز استفاده از اين حق توسط قانون تنظيم ميگردد.

**مادۀ سى و چهارم:**
آزادى بيان از تعرض مصؤن است.

هر افغان حق دارد فكر خود را به وسيله گفتار، نوشته، تصوير و يا وسايل ديگر، با رعايت احكام مندرج اين قانون اساسى

رعايت، ښرګند کړي.

هر افغان حق لري د قانون له حکمونو سره سم مطالب، بې له دې چې هغه مخکې له مخکې دولتي مقامونو ته وښيي، خپاره او نشر کړي.

د مطبعو، راډيو او تلويزيون، د مطبوعاتو دخپرولو او د جمعي ارتباط په نورو وسايلو پورې مربوط حکمونه د قانون له لياري تنظيمېږي.

**پنځه دېرشمه ماده:**
د افغانستان اتباع حق لري چې د خپلو مادي او يا معنوي غوښتنو د تأمين لپاره، د قانون له حکمونو سره سم، ټولنې جوړې کړي.

د افغانستان اتباع حق لري د قانون له حکمونو سره سم، سياسي ګوندونه جوړ کړي، په دې شرط چې:

۱– د ګوند مرامنامه او اساسنامه د اسلام د سپېڅلي دين د احکامو او په دې اساسي قانون کې د راغلو نصوصو او ارزښتونو مخالف نه وي؛

۲– د ګوند تشکيلات او مالي منابع ښرګند وي؛

۳– نظامي او نظامي ډوله تشکيلات

اظهار نمايد.

هر افغان حق دارد مطابق به احکام قانون، به طبع و نشر مطالب، بدون ارائه قبلی آن به مقامات دولتی، بپردازد.

احکام مربوط به مطابع، راديو و تلويزيون، نشر مطبوعات و ساير وسايل ارتباط جمعی توسط قانون تنظيم ميگردد.

**مادۀ سی و پنجم:**
اتباع افغانستان حق دارند به منظور تأمين مقاصد مادی و يا معنوی، مطابق به احکام قانون، جمعيتها تأسيس نمايند.

اتباع افغانستان حق دارند، مطابق به احکام قانون، احزاب سياسی تشکيل دهند، مشروط بر اينکه:

۱– مرامنامه و اساسنامۀ حزب، مناقض احکام دين مقدس اسلام و نصوص و ارزشهای مندرج اين قانون اساسی نباشد؛

۲– تشکيلات و منابع مالی حزب علنی باشد؛

۳– اهداف و تشکيلات نظامی و شبه

او هدفونه ونه لري؛

۴- له بهرنیو سیاسي گوندونو یا نورو بهرنیو منابعو سره تړلي نه وي؛

د قوم، سیمې، ژبې او فقهي مذهب پر بنسټ د گوند جوړول او فعالیت کول، جواز نه لري.

هغه جمعیت او گوند چې د قانون له حکمونو سره سم جوړېږي د قانوني موجباتو او باصلاحیتې محکمې له حکمه پرته نه منحل کېږي.

**شپږ دېرشمه ماده:**
د افغانستان اتباع حق لري چې د روا او سوله ییزو غوښتنو د تأمین لپاره له قانون سره سم بې وسلې غونډې او مظاهرې وکړي.

**اوه دېرشمه ماده:**
د اشخاصو د مخابرې او لیکونو آزادي او محرمیت که په لیکلي ډول وي یا د تیلیفون او تلگراف یا نورو وسیلو له لارې، له تېری څخه خوندي دي.

دولت د اشخاصو د مخابرو او لیکونو د پلټنې حق نه لري، مگر د قانون له حکمونو سره سم.

نظامی نداشته باشد؛

۴- وابسته به حزب سیاسی و یا دیگر منابع خارجی نباشد؛

تأسیس و فعالیت حزب برمبنای قومیت، سمت، زبان و مذهب فقهی جواز ندارد.

جمعیت و حزبی که مطابق به احکام قانون تشکیل می شود ، بدون موجبات قانونی و حکم محکمهٔ با صلاحیت منحل نمی شود.

**مادهٔ سی و ششم:**
اتباع افغانستان حق دارند برای تأمین مقاصد جایز و صلح آمیز، بدون حمل سلاح، طبق قانون اجتماع و تظاهرات نمایند.

**مادهٔ سی و هفتم:**
آزادی و محرمیت مراسلات و مخابرات اشخاص چه به صورت مکتوب باشد و چه به وسیلهٔ تیلفون، تلگراف و وسایل دیگر، از تعرض مصؤن است.

دولت حق تفتیش مراسلات و مخابرات اشخاص را ندارد، مگر مطابق به احکام قانون.

اته دېرشمه ماده:
د شخص استوګنځی له تېري څخه خوندي دی. هېڅوک د دولت په ګډون نشي کولای د استوګن له اجازې یا د واکمنې محکمې له قرار پرته او بې له هغو حالاتو او لارو چې په قانون کې ښوول شوي، د چا کور ته ورننوزي یا یې وپلټي.

د څرګند جرم په مورد کې مسئول مامور کولای شي د محکمې له مخکېنۍ اجازې پرته د شخص کورته ورننوزي یا هغه وپلټي. نوموړی مامور مکلف دی کور ته له ننوتو یا پلټنې وروسته، په هغه موده کې چې قانون یې ټاکي د محکمې قرار ترلاسه کړي.

نهه دېرشمه ماده:
هر افغان حق لري د هېواد هر ګوټ ته سفر وکړي او استوګن شي خو له هغو سیمو پرته چې قانون منع کړې وي.

هر افغان حق لري د قانون له حکمونو سره سم له افغانستان څخه بهر سفر وکړي او بیرته راستون شي.

دولت له هېواد څخه بهر د افغانستان د اتباعو د حقوقو ساتنه کوي.

مادۀ سی و هشتم:
مسکن شخص از تعرض مصؤن است. هیچ شخص، به شمول دولت، نمی تواند بدون اجازۀ ساکن یا قرار محکمۀ با صلاحیت و به غیر از حالات و طرزی که در قانون تصریح شده است، به مسکن شخص داخل شود یا آن را تفتیش نماید.

در مورد جرم مشهود، مامور مسئول می تواند بدون اجازۀ قبلی محکمه، به مسکن شخص داخل شود یا آن را تفتیش کند. مامور مذکور مکلف است بعد ازداخل شدن یا اجرای تفتیش، در خلال مدتی که قانون تعیین می کند قرار محکمه را حاصل نماید.

مادۀ سی ونهم:
هر افغان حق دارد به هر نقطۀ کشور سفر نماید و مسکن اختیار کند، مگر در مناطقی که قانون ممنوع قرار داده است.

هر افغان حق دارد مطابق به احکام قانون به خارج افغانستان سفر نماید و به آن عودت کند.

دولت از حقوق اتباع افغانستان در خارج از کشور حمایت می نماید.

**څلويښتمه ماده:**
ملکيت له تيري څخه خوندي دی.

هېڅوک د ملکيت د ترلاسه کولو او په هغه کې له تصرف کولو څخه نه منع کېږي، مگر د قانون د احکامو په حدودوکې.

د هيچا ملکيت د قانون د حکم او د باصلاحيته محکمې له پرېکړې پرته نه مصادره کېږي.

د شخص د ملکيت استملاک يوازې د عامه گټو د تأمين په مقصد، د مخکيني او عادلانه بدل په ورکولو، د قانون له مخې مجاز دی.

د شخص د شتمنۍ پلټنه او اعلان يوازې د قانون په حکم کېداي شي.

**يوڅلو يښتمه ماده:**
بهرني اشخاص په افغانستان کې د عقاري مالونو د ملکيت حق نه لري.

د عقار اجاره د پانگې اچونې په منظور د قانون له حکمونو سره سم جواز لري. د بهرنيو ملکونو پر سياسي نمايندگيو او پر هغو بين المللي مؤسسو چې افغانستان يکې غړيتوب لري د عقاري مالونو پلورل د قانون له حکمونو سره سم جواز لري.

**مادهٔ چهلم:**
ملکيت از تعرض مصؤن است.

هيچ شخص از کسب ملکيت و تصرف در آن منع نمی شود، مگر در حدود احکام قانون.

ملکيت هيچ شخص، بدون حکم قانون و فيصلهٔ محکمهٔ با صلاحيت مصادره نمی شود.

استملاک ملکيت شخص، تنها به مقصد تأمين منافع عامه، در بدل تعويض قبلی و عادلانه، به موجب قانون مجاز می باشد.

تفتيش و اعلان دارايی شخص، تنها به حکم قانون صورت می گيرد.

**مادهٔ چهل و يکم:**
اشخاص خارجی در افغانستان حق ملکيت اموال عقاری را ندارند.

اجارهٔ عقار به منظور سرمايه گذاری، مطابق به احکام قانون مجاز می باشد. فروش عقار به نمايندگی های سياسی دول خارجی و به مؤسسات بين المللی که افغانستان عضو آن باشد، مطابق به احکام قانون، مجاز می باشد.

**دوه څلویښتمه ماده:**

هــر افغـــان مکلــف دی د قـــانون لـــه حکمونـو سـره سـم دولـت تـه مالیـه او محصول ورکړي.

هیڅ راز مالیه او محصول، د قـانون لـه حکمه پرته نه وضع کېږي.

د مالیې او محصول اندازه او د ورکړې ډول یې د ټولنیز عـدالت پـه رعایـت د قانون په وسیله ښوول کېږي.

دا حکم د بهـرنیو کسـانو او مؤسســـسو په برخه کې هم تطبیقېږي.

هــــر ډول ورکــــړه شـــوي مـــالیه، محصــول او عایــدات، دولتــي واحــد حساب ته تحویلېږي.

**دري څلو یښتمه ماده:**

زده‌کـــــړه د افغـانســتـــــان د ټولـــــو اتباعــــو حـق دی چـــې د لـیسـانــس تـــر درجـــې پـورې وړیـا د دولـت لـــه خـــوا تـأمـیـنـیـږي.

دولت مکلف دی چې په ټول افغانستان کــې د متــوازن معـارف د عـامولو او د منځنیو اجباري زده کړو د تـأمین لپـاره اغېزمن پروګرام طرح او تطبیـق کـړي او د مورنیـو ژبـو د تـدریس لپـاره پـه هغـو سـیموکي چـې پـرې خبـرې کېـږي لاره

**مادۀ چهل و دوم:**

هــر افـغـان مـکلـف اسـت مـطابـق بــه احــکام قانــون بــه دولــت مالیـــه و محصول تأدیه کند.

هیچ نوع مالیه و محصول، بدون حکم قانون، و ضع نمی شود.

انـدازۀ مـالیه و محصـول و طـرز تادیـۀ آن، بــا رعـایــت عــدالت اجتمــاعی، توسط قانون تعیین میگردد.

ایـــن حکـــم در مـــورد اشـــخاص و مؤسسات خارجی نیز تطبیق میشود.

هـــر نـــوع مالیـــه، محصــول و عوایــد تـــادیه شـــده، بـــه حـــساب واحـــد دولتی تحویل داده می شود.

**مادۀ چهل وسوم:**

تعلیم حـق تمام اتباع افغانستان است کـه تـا درجـه لیسـانس در مؤسسـات تعلیمـی دولتـی بـه صـورت رایگـان از طرف دولت تأمین می گردد.

دولـت مکلـف است بـه منظـور تعمـیم متــوازن معــارف در تمــام افغانســتان، تــأمین تعلیمــات متوســطۀ اجبــاری، پروگـرام مـؤثر طـرح و تطبیـق نمایـد و زمینه تدریس زبـان هـای مـادری را در مناطقـــی کـه بـه آنهـا تکلـم مـی کننـد

هواره کړي.

**څلور څلويښتمه ماده:**
دولت مکلف دی د ښځود زده‌کړو د پراختيا او توازن د ايجاد په منظور، دکوچيانو د زده‌کړو د ښه والي او په هيوادکې د بې سوادۍ د له منځه وړلو لپاره اغېزمن پروګرامونه طرح او تطبيق کړي .

**پنځه څلويښتمه ماده :**
دولت داسلام دسپېڅلي دين د حکمونو او ملي فرهنګ پر بنسټ او له علمي اصولو سره سم، واحد تعليمي نصاب طرح او تطبيقوي او دښوونځيو د ديني مضمونونو نصاب په افغانستان کې د شتو اسلامي مذهبونو پر بنسټ تدوينوي.

**شپږ څلويښتمه ماده :**
د لوړو عمومي او اختصاصي زده‌کړو د مؤسسو جوړول او اداره کول، د دولت وظيفه ده.

دافغانستان اتباع کولای شي د دولت په اجازه د لوړو، عمومي، اختصاصي او د سواد زده‌کړو مؤسسې جوړې کړي.

دولت کولای شي بهرنيو کسانو ته هم د قانون له حکمونو سره سم دلوړو،

فراهم کند.

**مادۀ چهل و چهارم:**
دولت مکلف است به منظور ايجاد توازن و انکشاف تعليم برای زنان، بهبود تعليم کوچيان و امحای بی سوادی در کشور، پروگرامهای مؤثر طرح و تطبيق نمايد.

**مادۀ چهل و پنجم:**
دولت نصاب واحد تعليمی را، بر مبنای احکام دين مقدس اسلام و فرهنگ ملی و مطابق با اصول علمی، طرح و تطبيق می کند و نصاب مضامين دينی مکاتب را، بر مبنای مذاهب اسلامی موجود در افغانستان، تدوين می نمايد.

**مادۀ چهل و ششم:**
تأسيس و ادارۀ مؤسسات تعليمات عالی، عمومی و اختصاصی وظيفه دولت است.

اتباع افغانستان می توانند به اجازۀ دولت به تأسيس مؤسسات تعليمات عالی، عمومی، اختصاصی و سواد آموزی اقدام نمايند.

دولت می تواند تأسيس مؤسسات تعليمات عالی، عمومی و اختصاصی

عمومي او اختصاصي زده‌کړو د مؤسسو د جوړولو اجازه ورکړي.

د لوړو زده کړو په دولتي مؤسسو کې دشاملېدو شرطونه او له هغو سره نورې مربوطې چارې، دقانون له لیارې تنظیمېږي.

**اوه څلویښتمه ماده:**
دولت د علم ، فرهنګ، ادب او هنر د پرمختګ لپاره اغیز من پروګرامونه طرح کوي.

دولت د مؤلف، مخترع او کاشف حقوق تضمینوي او په ټولو برخو کې علمي څېړنې هڅوي او ملاتړ یې کوي او د هغو له نتیجو څخه د اغیزمنې ګټې اخیستل د قانون له حکمونو سره سم عاموي.

**اته څلویښتمه ماده:**
کار، د هر افغان حق دي.

دکار د ساعتونو ټاکل، او با معاشه رخصتي، د کار او کارګر حقوق او له هغو سره نورې مربوطې چارې د قانون له لیارې تنظیمېږي.

د قانون د حکمونو په حدودو کې د کار او کسب انتخاب آزاد دی.

را به اشخاص خارجی نیز مطابق به احکام قانون اجازه دهد.

شرایط شمول در مؤسسات تعلیمات عالی دولتی و سایر امور مربوط به آن، توسط قانون تنظیم میگردد.

**مادهٔ چهل و هفتم:**
دولت برای پیشرفت علم، فرهنگ، ادب و هنر پروگرامهای مؤثر طرح می نماید.

دولت حقوق مؤلف، مخترع و کاشف را تضمین می نماید و تحقیقات علمی را در تمام عرصه ها تشویق و حمایت می کند و استفادهٔ مؤثر از نتایج آن را، مطابق به احکام قانون، تعمیم می بخشد.

**مادهٔ چهل و هشتم:**
کار حق هر افغان است.

تعیین ساعات کار، رخصتی با مزد، حقوق کار و کارگر و سایر امور مربوط به آن توسط قانون تنظیم میگردد.

انتخاب شغل و حرفه، در حدود احکام قانون، آزاد می باشد.

**نهه څلويښتمه ماده :**
**د جبري کار تحميل منع دی.**

د جګړې، آفتونو او نورو داسې حالاتو کې چې عامه ژوند او هوساينه تهديد کړي فعاله برخه اخيستنه د هر افغان ملي وجيبه ده.

پر ماشومانو د کار تحميل جواز نه لري.

**پنځوسمه ماده:**
دولت مکلف دی چې د يوې سالمې ادارې او د هېواد په اداري سيستم کې د سمون د رامنځته کيدو لپاره، لازم تدبيرونه ونيسي.

اداره خپل اجراآت په بشپړه بې طرفۍ او د قانون له حکمونو سره سم عملي کوي.

د افغانستان اتباع حق لري د قانون د حکمونو په حدودو کې له دولتی ادارو څخه اطلاعات ترلاسه کړي . دا حق د نورو حقوقو او عامه امنيت ته له زيان رسولو پرته، حدود نه لري.

د افغانستان اتباع د اهليت له مخې او له هر ډول توپير څخه پرته د قانون له حکمونو سره سم د دولت خدمت ته منل کيږي.

**مادۀ چهل و نهم:**
**تحميل کار اجباری ممنوع است.**

سهم گيری فعا ل در حالت جنگ، آفات و ساير حالاتی که حيات و آسايش عامه را تهديد کنند، از وجايب ملی هر افغان می باشد.

تحميل کار بر اطفال جواز ندارد.

**مادۀ پنجاهم:**
دولت مکلف است به منظور ايجاد ادارۀ سالم و تحقق اصلاحات در سيستم اداری کشور تدابير لازم اتخاذ نمايد.

اداره اجراآت خود را با بيطرفی کامل و مطابق به احکام قانون عملی می سازد.

اتباع افغانستان حق دسترسی به اطلاعات از ادارات دولتی را در حدود احکام قانون دارا می باشند. اين حق جز صدمه به حقوق ديگران و امنيت عامه حدودی ندارد.

اتباع افغانستان بر اساس اهليت و بدون هيچگونه تبعيض و به موجب احکام قانون به خدمت دولت پذيرفته می شوند.

**یوپنځوسمه ماده:**
هر څوک چې له اداري څخه بې موجبه زیانمن شي د تاوان اخیستلو مستحق دی او کولای شي د تاوان د ترلاسه کولو لپاره په محکمه کې دعوا اقامه کړي.

له هغو حالاتو پرته چې قانون ښوولي، دولت نشي کولای د با صلاحیته محکمې له حکمه پرته د خپلو حقوقو د ترلاسه کولو لپاره اقدام وکړي.

**دوه پنځوسمه ماده :**
دولت د افغانستان د ټولو اتباعو لپاره د ناروغیو د مخنیوي او د وړیا علاج وسیلې او روغتیایي آسانتیاوي د قانون له حکمونو سره سم تأمینوي.

دولت له قانون سره سم د خصوصي طبي خدمتونو او روغتیایي مرکزونو جوړول او پراختیا هڅوي او ملاتړ یې کوي.

دولت د سالمې بدني روزنې د پیاوړتیا او د ملي او سیمه ییزو ورزشونو د پراختیا لپاره لازم تدبیرونه نیسي.

**دري پنځوسمه ماده :**
دولت د شهیدانو او مفقودینو له پاتې کسانو، د معلولینو او معیوبینو د بیا ځواکمنۍ او په ټولنه کې د هغوی د

**مادهٔ پنجاه و یکم:**
هر شخص که از اداره بدون موجب متضرر شود مستحق جبران خساره می باشد و می تواند برای حصول آن در محکمه دعوا اقامه کند.

به استثنای حالاتی که در قانون تصریح گردیده است، دولت نمی تواند بدون حکم محکمهٔ با صلاحیت به تحصیل حقوق خود اقدام کند.

**مادهٔ پنجاه و دوم:**
دولت وسایل وقایه و علاج امراض و تسهیلات صحی رایگان را برای همه اتباع مطابق به احکام قانون تأمین می نماید.

دولت تأسیس و توسعه خدمات طبی و مراکز صحی خصوصی را مطابق به احکام قانون تشویق و حمایت می کند.

دولت به منظور تقویت تربیت بدنی سالم و انکشاف ورزشهای ملی و محلی تدابیر لازم اتخاذ می نماید.

**مادهٔ پنجاه و سوم:**
دولت به منظور تنظیم خدمات طبی و مساعدت مالی برای بازماندگان شهدأ و مفقودین و برای باز

فعالې ونډې اخیستنې په خاطر د مالي مرستو او روغتیایي خدمتونو د تنظیم لپاره د قانون له حکمونو سره سم لازم تدبیرونه نیسي.

دولت د متقاعدینو حقوق تضمینوي او له زړو کسانو، بې سر پرسته ښځو، معیوبینو او معلولینو او بې وسه یتیمانو سره د قانون له حکمونو سره سم لازمي مرستې کوي.

**څلور پنځوسمه ماده :**

کورنۍ د ټولنې اساسي رکن دی او د دولت تر پاملرنې لاندې ده.

دولت د کورنۍ او په ځانګړې توګه د مور او ماشوم د جسمي او روحي روغتیا د تأمین، د ماشومانو د روزنې او د اسلام د سپیڅلي دین له احکامو سره د مغایرو رسومو د له منځه وړو لپاره لازم تدبیرونه نیسي.

**پنځه پنځوسمه ماده :**

له هېواد څخه دفاع د افغانستان د ټولو اتباعو وجیبه ده.

د عسکري مکلفیت د دورې د تېرولو شرطونه دقانون له لیارې تنظیمېږي.

توانی معلولین و معیوبین و سهم گیری فعال آنان در جامعه، مطابق به احکام قانون، تدابیر لازم اتخاذ می نماید.

دولت حقوق متقاعدین را تضمین نموده، برای کهن سالان، زنان بی سرپرست، معیوبین و معلولین و ایتام بی بضاعت مطابق به احکام قانون کمک لازم به عمل می آورد.

**مادۀ پنجاه و چهارم:**

خانواده رکن اساسی جامعه را تشکیل می دهد و مورد حمایت دولت قرار دارد.

دولت به منظور تأمین سلامت جسمی و روحی خانواده، بالاخص طفل و مادر، تربیت اطفال و برای از بین بردن رسوم مغایر با احکام دین مقدس اسلام تدابیر لازم اتخاذ می کند.

**مادۀ پنجاه و پنجم:**

دفاع از وطن وجیبۀ تمام اتباع افغانستان است.

شرایط اجرای دورۀ مکلفیت عسکری توسط قانون تنظیم میگردد.

**شپږ پنځوسمه ماده:**
د اساسي قانون د حکمونو پيروي، د قوانينو اطاعت او دعامه نظم او امنيت رعايت دافغانستان د ټولو خلکو وجيبه ده.

د قانون له حکمونو څخه بې خبري عذر نه ګڼل کېږي.

**اوه پنځوسمه ماده :**
دولت په افغانستان کې د خارجي اتباعو حقوق او آزادۍ له قانون سره سم تضمينوي. دا کسان د بين المللي حقوقو د قواعدو په حدودوکې د افغانستان د دولت د قوانينو په رعايت مکلف دي.

**اته پنځوسمه ماده :**
دولت په افغانستان کې د بشر د حقوقو د رعايت د څارنې، ښه والي او ملاتړ لپاره، د افغانستان د بشر د حقوقو خپلواک کمېسيون جوړوي.

هر څوک کولای شي د خپلو بشري حقوقو د نقض په صورت کې دې کمېسيون ته شکايت وکړي.

کميسيون کولای شي د افرادو د بشري حقوقو د نقض موارد، مربوطو قانوني څانګو ته راجع کړي او د هغوی له

**مادهٔ پنجاه و ششم:**
پيروی از احكام قانون اساسی، اطاعت از قوانين و رعايت نظم و امن عامه وجيبه تمام مردم افغانستان است.

بی خبری از احكام قانون عذر دانسته نمی شود.

**مادهٔ پنجاه و هفتم:**
دولت حقوق و آزادی های اتباع خارجی را در افغانستان، طبق قانون تضمين می كند. اين اشخاص در حدود قواعد حقوق بين المللی به رعايت قوانين دولت افغانستان مكلف می باشند.

**مادهٔ پنجاه و هشتم:**
دولت به منظور نظارت بر رعايت حقوق بشر در افغانستان و بهبود و حمايت از آن، كميسيون مستقل حقوق بشر افغانستان را تأسيس می نمايد.

هر شخص می تواند در صورت نقض حقوق بشری خود، به اين كميسيون شكايت نمايد.

كميسيون می تواند موارد نقض حقوق بشری افراد را به مراجع قانونی راجع سازد و در دفاع از

حقوقو ځخه په دفاع کې مرسته وکړي.

ددې کمېسیون جوړښت او د کار ډول يې د قانون له لیارې تنظیمېږي.

**نهه پنځوسمه ماده :**
هېڅوک نشي کولای په دې اساسي قانون کې له راغلو آزادیو او حقوقو ځخه په ناوړه استفادې د هېواد د خپلواکۍ، ځمکنۍ بشپړتیا، ملي واکمنۍ او ملي وحدت پر ضد عمل وکړي.

## دريم فصل
## جمهور رئیس

**شپیتمه ماده :**
جمهور رئیس د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت په سر کې دی چې خپل واکونه په اجرائیه، مقننه او قضائیه برخو کې ددې اساسي قانون له حکمونو سره سم عملي کوي.

جمهور رئیس دوه، لومړی او دویم مرستیالان لري.

د جمهوري ریاست کاندید د خپلو مرستیالانو نومونه د ځان له کاندیدولو سره یو ځای ملت ته اعلاموي.

حقوق آنها مساعدت نماید.

تشکیل و طرز فعالیت این کمیسیون توسط قانون تنظیم میگردد.

**مادهٔ پنجاه و نهم:**
هیچ شخص نمی تواند با سوء استفاده از حقوق و آزادیهای مندرج این قانون اساسی، بر ضد استقلال، تمامیت ارضی، حاکمیت و وحدت ملی عمل کند.

## فصل سوم
## رئیس جمهور

**مادهٔ شصتم:**
رئیس جمهور در رأس دولت جمهوری اسلامی افغانستان قرار داشته، صلاحیت های خود را در عرصه های اجرائیه، تقنینیه و قضائیه، مطابق به احکام این قانون اساسی، اعمال می کند.

رئیس جمهور دارای دو معاون اول و دوم، می باشد.

کاندید ریاست جمهوری نام هر دو معاون را همزمان با کاندید شدن خود به ملت اعلام میدارد.

د جمهــور رئـيس لــومړی مرسـتيال د جمهـور رئـيس د غيـاب، استعفأ او يا مړينې په حالاتوکې ددې اساسي قـانون له مندرجو حکمونو سره سم، کار کوي.

د جمهـــــور رئـــــيس د لــومـــــړي مــرستــيــال پــه غيــاب کــې، دويــم مرستيال د اساسـي قـانون لـه مندرجو احکامو سره سم، عمل کوي.

**يوشپيتمه ماده :**

جمهـــور رئــيس د راي ورکوونکيـــو د آزادو، عمومي، پټو او مستقيمو رايـو لــه لارې په سلــوکې تر پنځـوسو زيـاتو رايو په ترلاسه کــولو انتخابيږي.

د جمهـور رئـيس وظيفـه تـر انتخابـاتو وروسـته د پـنځم کـا ل د غبرګـولي پـه لومړی نيټه پای ته رسيږي.

د جمهور رئيس د کار تر پای ته رسېدو د مخـه د نـوي جمهـور رئـيس د ټـاکلو لپـاره انتخابـات، لـه ديرشـو ترشـپيتو ورځو پورې، موده کې کيږي.

کــه چيــرې پــه لــومړي پــړاو کــې لــه کانديدانو څخه يو هم ونه کړای شي چې په سلوکې تر پنځوسو زياتې رايې ترلاســه کــړي، انتخابـات د دوهـم ځـل لپاره د انتخاباتو د نتـايجو د نېټې تر اعـلان وروسـته د دوو اونيـو پـه اوږدو

معــاون اول رئـيس جمهــور در حالــت غيــاب، اســتعفأ و يــا وفــات رئــيس جمهـور، مطـابق بـه احکـام منـــدرج ايــن قانون اساسی، عمل می کند.

در غـــيـــــاب مـــــعاون اول رئـــيس جمهــور، معـــاون دوم مطــابـــق بــه احکام منـــدرج ايـــن قـــانون اساسی عمل می کـــند.

**مادهٔ شصت و يکم:**

رئيس جمهور بـا کسب اکثريت بيش از پنجـاه فـی صد آرای رای دهنـد گان از طريــق رأی گيـــری آزاد، عمــومی، سری و مستقيم انتخاب می گردد.

وظـيـفــــهٔ رئـيـــــس جـــــمهور در اول جوزای سـال پنـجم بعد از انتخابـات پايان می يــابــد.

انتخابــات بــه منظــور تعيــين رئــيس جمـهور جـــديد در خـلال مــدت سی الــی شــصت روز قبـل از پايــان کــار رئـــيس جمهـــور برگزار ميگردد.

هــرگـــــاه در دور اول هـــيچ يـــک از کــانـديـدان نتــواند اکثريت بــيش از پنجـــاه فـــی صـــد آرا را بـــه دســـت آورد، انتـــــخابات بــرای دور دوم در ظـــــرف دو هفـــته از تـــاريخ اعـــلام نتـــــايج انتـــــخابات بـــرگزار مـــی

کې تر سره کېږي . دا ځل یوازې هغه دوه تنه کاندیدان په انتخاباتو کې برخه اخلي چې په لومړي پړاو کې یې تر ټولو زیاتي رایي ترلاسه کړي وي.

د انتخاباتو په دویم پړاو کې هغه څوک چې د رایو اکثریت ترلاسه کړي، جمهور رئیس ګڼل کېږي.

که چېرې د جمهوري ریاست یو کاندید د رای ګیرۍ د لومړي یا دویم پړاو په جریان او یا تر انتخاباتو وروسته او یا د انتخاباتو د نتایجو له اعلان څخه پخوا مړ شي، نوي انتخابات د قانون له حکمونو سره سم کېږي.

دوه شپېتمه ماده :
څوک چې جمهوري ریاست ته کاندید کېږي، باید دلاندینیو شرطونو لرونکی وي:

۱- د افغانستان تبعه، مسلمان، له افغان مور او پلار څخه زېږېدلی وي او د بل هېواد تابعیت ونه لري؛

۲- د کاندیدیدو په ورځ یې عمر تر څلویښتو کلونو لږ نه وي؛

۳- د محکمې له خوا د بشري ضد جرمونو، او جنایت په ارتکاب او یا له مدني حقوقو څخه په محرومۍ محکوم

گردد و در این دور تنها دو نفر از کاندیدانی که بیشترین آرا را در دور اول به دست آورده اند ، شرکت می نمایند.

در دور دوم انتخابات، کاندیدی که اکثریت آرا را کسب کند ، رئیس جمهور شناخته می شود.

هرگاه یکی از کاندیدان ریاست جمهوری در جریان دور اول یا دوم رأی گیری و یا بعد از انتخابات و قبل از اعلام نتایج انتخابات وفات نماید ، انتخابات مجدد مطابق به احکام قانون برگزار میگردد.

مادۀ شصت و دوم:
شخصی که به ریاست جمهوری کاندید می شود ، واجد شرایط ذیل می باشد:

۱- تبعۀ افغانستان، مسلمان و متولد از والدین افغان بوده و تابعیت کشور دیگری را نداشته باشد ؛

۲- در روز کاندید شدن سن وی از چهل سال کمتر نباشد ؛

۳- از طرف محکمه به ارتکاب جرایم ضد بشری، جنایت و یا حرمان از حقوق مدنی محکوم

شوی نه وي؛

هېڅ شخص نشي کولای له دوو دورو زيات د جمهور رئيس په حيث وټاکل شي.

په دې ماده کې راغلی حکم د جمهور رئيس د مرستيالانو په برخه کې هم تطبيقېږي.

**دري شپېتمه ماده :**

جمهور رئيس د کار تر پيل د مخه، د ځانګړې کړنلارې سره سم، چې د قانون له ليارې تنظيمېږي، دا لاندې لوړه يادوي:

**بسم الله الرحمن الرحيم**

"د لوی خدای (جل جلاله) په نامه لوړه کوم چې د اسلام د سپېڅلي دين پيروي او ساتنه وکړم. د اساسي قانون او نورو قوانينو رعايت او د تطبيق څارنه وکړم.

د افغانستان د خپلواکۍ، ملي واکمنۍ، ځمکنۍ بشپړتيا ساتنه او د افغانستان د خلکو حقوق او ګټې خوندي کړم او د لوی خدای (ج) له دربار څخه د مرستې په غوښتلو او د ملت په ملاتړ د افغانستان د خلکو د پرمختګ او هوسايۍ په لاره

نشده باشد؛

هيچ شخص نمی تواند بيش از دو دوره به حيث رئيس جمهور انتخاب گردد.

حکم مندرج اين ماده در مورد معاونين رئيس جمهور نيز تطبيق می گردد.

**مادۀ شصت و سوم:**

رئيس جمهور قبل از تصدی وظيفه، مطابق به طرز العمل خاص که توسط قانون تنظيم ميگردد، حلف آتی را به جا می آورد:

**بسم الله الرحمن الرحيم**

"به نام خداوند بزرگ (جل جلاله) سوگند ياد می کنم که دين مقدس اسلام را اطاعت و از آن حمايت کنم. قانون اساسی و ساير قوانين را رعايت و از تطبيق آن مواظبت نمايم.

از استقلال، حاکميت ملی و تماميت ارضی افغانستان حراست و حقوق و منافع مردم افغانستان را حفاظت کنم و با استعانت از بارگاه پروردگار متعال و پشتيبانی ملت، مساعی خود را در راه سعادت و ترقی مردم

کې خپلې هڅې جارې وساتم."

**څلور شپیتمه ماده:**
جمهور رئیس لاندې واکونه او وظیفې لري:

۱- د اساسي قانون د اجرأ څارل؛

۲- د ملي شورى په تصویب د هېواد د سیاست د اساسي کرښو ټاکل؛

۳- د افغانستان د وسله والو ځواکونو ستر مشرتوب؛

۴- د ملي شورى په تایید دجګړې او متارکې اعلانول؛

۵- د ځمکنۍ بشپړتیا او د خپلواکۍ د ساتنې د دفاع په حالت کې د لازم تصمیم نیول؛

۶- د ملي شورى په تایید له افغانستان څخه بهر ته د وسله والو ځواکونو د ټولګیو لېږل؛

۷- ددې اساسي قانون په (نهه شپیتمه) ماده کې له راغلي حالت پرته، دلویې جرګې راغوښتل؛

۸- د ملي شورى په تایید د اضطراري حالت اعلان او دهغه پای ته رسول؛

افغانستان بکار برم."

**مادۀ شصت و چهارم:**
رئیس جمهور دارای صلاحیتها و وظایف ذیل می باشد:

۱- مراقبت از اجرای قانون اساسی؛

۲- تعیین خطوط اساسی سیاست کشور به تصویب شورای ملی؛

۳- قیادت اعلای قوای مسلح افغانستان؛

۴- اعلان حرب و متارکه به تائید شورای ملی؛

۵- اتخاذ تصمیم لازم در حالت دفاع از تمامیت ارضی و حفظ استقلال؛

۶- فرستادن قطعات قوای مسلح به خارج افغانستان به تائید شورای ملی؛

۷- دایر نمودن لویه جرگه به استثنای حالت مندرج مادۀ شصت و نهم این قانون اساسی؛

۸- اعلان حالت اضطرار به تائید شورای ملی و خاتمه دادن به آن؛

۹- د ملي شوری او لویې جرګې د غونډو پرانیستل؛

۱۰- د جمهوري ریاست د مرستیالانو د استعفی منل؛

۱۱- د ولسي جرګې په تایید د وزیرانو، لوی څارنوال، د مرکزی بانک، د ملی امنیت او سرې میاشتې د رئیسانو ټاکل او د هغوی عزلول او د استعفی منل؛

۱۲- د ولسي جرګې په تایید د سترې محکمې د رئیس او غړیو ټاکل؛

۱۳- د قانون له حکمونو سره سم د قاضیانو، د وسله والو ځواکونو، پولیسو، د ملی امنیت د منصبدارانو او دلوړ رتبه مامورینو ټاکل، تقاعد ورکول، د استعفی منل او عزلول؛

۱۴- په بهرنیو هېوادونو او نړیوالو موسسو کې د افغانستان د سیاسي نمایندهګیو د مشرانو ټاکل؛

۱۵- په افغانستان کې د بهرنیو سیاسي نمایندهګانو د باورلیکونو منل؛

۱۶- د قوانینو او تقنیني فرمانونو توشېح کول؛

۹- افتتاح اجلاس شورای ملی و لویه جرگه؛

۱۰- قبول استعفای معاونین ریاست جمهوری؛

۱۱- تعیین وزرا، لوی ثارنوال، رئیس بانک مرکزی، رئیس امنیت ملی و رئیس سره میاشت به تائید ولسی جرگه و عزل و قبول استعفای آنها؛

۱۲- تعیین رئیس و اعضای ستره محکمه به تائید ولسی جرگه؛

۱۳- تعیین، تقاعد، قبول استعفا و عزل قضات، صاحب منصبان قوای مسلح، پولیس و امنیت ملی و مامورین عالی رتبه مطابق به احکام قانون؛

۱۴- تعیین سران نمایندگی های سیاسی افغانستان نزد دول خارجی و مؤسسات بین المللی؛

۱۵- قبول اعتماد نامه های نمایندگان سیاسی خارجی در افغانستان؛

۱۶- توشیح قوانین و فرامین تقنینی؛

۱۷- د قانون له حکمونو سره سم د دولتونو ترمنځ د معاهدو د عقد لپاره د باورليکونو ورکول؛

۱۸- د قانون له حکمونو سره سم د جزاگانو تخفيف او بخښل؛

۱۹- د قانون له حکمونو سره سم د مډالونو، نښانونو او افتخاري لقبونو ورکول؛

۲۰- د هېواد د اداري سمون په منظور، د قانون له مخې، د کمېسيونونو جوړول؛

۲۱- په دې اساسي قانون کې نور راغلي واکونه او وظايف؛

**پنځه شپېتمه ماده:**
جمهور رئيس کولای شي په مهمو ملي، سياسي، ټولنيزو او يا اقتصادي چارو کې د افغانستان د خلکو ټولپوښتنې ته مراجعه وکړي.

ټولپوښتنه بايد د دې اساسي قانون د حکمونو مخالفه او د هغه د تعديل مستلزم نه وي.

**شپږ شپېتمه ماده:**
جمهور رئيس په دې اساسي قانون کې

۱۷- اعطای اعتبار نامه به غرض عقد معاهدات بين الدول مطابق به احکام قانون؛

۱۸- تخفيف و عفو مجازات مطابق به احکام قانون؛

۱۹- اعطای مدالها، نشانها و القاب افتخاری مطابق به احکام قانون؛

۲۰- تأسيس کميسيون ها به منظور بهبود ادارهٔ کشور مطابق به احکام قانون؛

۲۱- ساير صلاحيتها و وظايف مندرج اين قانون اساسی؛

**مادهٔ شصت و پنجم:**
رئيس جمهور می تواند در موضوعات مهم ملی، سياسی، اجتماعی و يا اقتصادی به آرای عمومی مردم افغانستان مراجعه نمايد.

مراجعه به آرای عمومی نبايد مناقض احکام اين قانون اساسی و يا مستلزم تعديل آن باشد.

**مادهٔ شصت و ششم:**
رئيس جمهور در اعمال

د راغلو واکونو د عملي کولو په برخه کې د افغانستان د خلکو لوړ مصلحتونه په پام کې نیسي.

جمهور رئیس نشي کولای چې د قانون له حکمه پرته دولتي ملکیتونه او شتمنۍ وپلوري او یا یې وبخښي.

جمهور رئیس نشي کولای د خپل کار په دوران کې له خپل مقام څخه په ژبنیو، سیمه‌ییزو، قومي، مذهبي او ګوندي ملحوظاتو ګټه واخلي.

**اوه شپیتمه ماده:**

د جمهور رئیس د استعفی، عزل، مړینې او یا په صعب العلاجه ناروغۍ د اخته کېدلو په صورت کې چې د وظیفې د اجرا مخه نیسي د جمهور رئیس لومړی مرستیال د جمهور رئیس واکونه او وظایف په غاړه اخلي.

جمهور رئیس خپله استعفی په خپله ملي شوری ته اعلاموي.

د صعب العلاجه ناروغۍ تثبیت د هغه طبي هیئت له خوا کېږي چې ستره محکمه یې ټاکي.

په داسې حالاتو کې د نوي جمهور

صلاحیتهای مندرج این قانون اساسی، مصالح علیای مردم افغانستان را رعایت می کند.

رئیس جمهور نمی تواند بدون حکم قانون ملکیت های دولتی را بفروشد یا اهدا کند.

رئیس جمهور نمی تواند در زمان تصدی وظیفه از مقام خود به ملحوظات لسانی، سمتی، قومی، مذهبی و حزبی استفاده نماید.

**مادۀ شصت و هفتم:**

در صورت استعفا، عزل یا وفات رئیس جمهور و یا مریضی صعب العلاج که مانع اجراء وظیفه شود، معاون اول رئیس جمهور صلاحیتها و وظایف رئیس جمهور را به عهده می گیرد.

رئیس جمهور استعفای خود را شخصاً به شورای ملی اعلام می نماید.

تثبیت مریضی صعب العلاج توسط هیئت طبی با صلاحیت که از طرف ستره محکمه تعیین میگردد صورت میگیرد.

در این حالات در خلال مدت سه

رئیس د ټاکلو لپاره په درې میاشتو کې دننه ددې اساسي قانون د یوشپیتمې مادې له حکم سره سم انتخابات کېږي.

ماه انتخابات به منظور تعیین رئیس جمهور جدید طبق مادهٔ شصت و یکم این قانون اساسی برگزار میگردد.

د جمهور رئیس لومړی مرستیال د لنډ مهاله جمهور رئیس په توګه، د وظیفې د ترسره کولو په موده کې لاندینۍ چارې نشي ترسره کولای:

معاون اول رئیس جمهور در زمان تصدی به حیث رئیس جمهور موقت امور ذیل را انجام داده نمی تواند:

۱- د اساسي قانون تعدیل؛

۱- تعدیل قانون اساسی؛

۲- د وزیرانو عزل؛

۲- عزل وزرا؛

۳- ټول پوښتنه؛

۳- مراجعه به آرای عامه؛

د جمهور رئیس مرستیالان ددې اساسي قانون له حکمونو سره سم کولای شي ځان جمهوري ریاست ته کاندید کړي.

معاونین رئیس جمهور می توانند مطابق به احکام این قانون اساسی خود را به ریاست جمهوری کاندید نمایند.

د جمهور رئیس په غیاب کې د لومړي مرستیال وظایف د جمهور رئیس په واسطه ټاکل کېږي.

در صورت غیاب رئیس جمهور، وظایف معاون اول توسط رئیس جمهور تعیین می گردد.

**اته شپیتمه ماده :**
کله چېرې د جمهور رئیس یو مرستیال استعفی وکړي او یا مړ شي د هغه پرځای بل شخص د جمهور رئیس له خوا او د ولسی جرګې په تائید ټاکل کېږي.

**مادهٔ شصت و هشتم:**
هرگاه یکی از معاونین رئیس جمهور استعفاء و یا وفات نماید عوض وی شخص دیگری توسط رئیس جمهور به تائید ولسی جرگه تعیین میگردد.

د جمهور رئيس او د هغه د لومړي مرستيال د يوځايي مړينې په صورت کې په ترتيب سره دويم مرستيال، د مشرانو جرگې رئيس د ولسي جرگې رئيس د او د بهرنيو چارو وزير يو په بل پسي ددې اساسي قانون د (اوه شپيتمې) مادې له حکم سره سم د جمهور رئيس وظيفې په غاړه اخلي.

**نهه شپيتمه ماده :**

جمهور رئيس د ملت او ولسي جرگې په وړاندې ددې مادې د احکامو مطابق مسؤل دی.

پر جمهور رئيس د بشري ضد جرمونو، ملی خيانت يا جنايت د ارتکاب تور لگول د ولسي جرگې د ټولو غړيو د درېيمې برخې له خوا غوښتل کېدای شي. که چېرې داغوښتنه د ولسي جرگې د ټولو غړيو له دريو څخه د دوو برخو د رايو له خوا تاييد شي، ولسي جرگه د يوې مياشتې دننه لويه جرگه دايروي.

که لويه جرگه منسوب شوی اتهام د ټولو غړيو له دريو څخه د دوو برخو د رايو په اکثريت تصويب کړي، جمهور رئيس له وظيفې څخه گوښه او موضوع ځانگړې محکمې ته سپارل کيږي. ځانگړې محکمه د ولسی

در صورت وفات همزمان رئيس جمهور و معاون اول وی، بالترتيب معاون دوم، رئيس مشرانو جرگه، رئيس ولسی جرگه و وزير خارجه يکی بعد ديگری مطابق به حکم مندرج مادۀ شصت و هفتم اين قانون اساسی وظايف رئيس جمهور را به عهده ميگيرد.

**مادۀ شصت و نهم:**

رئيس جمهور در برابر ملت و ولسی جرگه مطابق به احکام اين ماده مسئول می باشد.

اتهام عليه رئيس جمهور به ارتکاب جرايم ضد بشری، خيانت ملی يا جنايت، از طرف يک ثلث کل اعضای ولسی جرگه تقاضا شده می تواند. در صورتيکه اين تقاضا از طرف دو ثلث کل آرای ولسی جرگه تائيد گردد، ولسی جرگه در خلال مدت يک ماه لويه جرگه را داير می نمايد.

هرگاه لويه جرگه اتهام منسوب را به اکثريت دو ثلث آرای کل اعضا تصويب نمايد، رئيس جمهور از وظيفه منفصل و موضوع به محکمۀ خاص محول ميگردد. محکمۀ خاص متشکل است از

جرگې له دريو غړيو، دسترې محکمې له دريو غړيو چې لويه جرگه يې ټاکي او د مشرانو جرگې له رئيس څخه جوړيږي، دعوي د هغه شخص له خوا چې د لوې جرگې له خوا ټاکل کيږي، اقامه کيږي.

رئيس مشرانو جرگه، سه نفر از اعضای ولسی جرگه و سه نفر از اعضای ستره محکمه به تعيين لويه جرگه، اقامهٔ دعوی توسط شخصی که از طرف لويه جرگه تعيين می گردد صورت ميگيرد.

په دې حالت کې د دې اساسي قانون په (اوه شپيتمه) ماده کې راغلي حکمونه تطبيقيږی.

در اين حالت احکام مندرج مادهٔ شصت و هفتم اين قانون اساسی تطبيق می گردد.

**اويا يمه ماده :**

د جمهور رئيس تنخوا او لگښتونه د قانون له لياري تنظيميږي.

**مادهٔ هفتادم:**

معاش و مصارف رئيس جمهور توسط قانون تنظيم می گردد.

جمهور رئيس د خدمت د دورې تر ختميدو وروسته د عزل له حالته پرته د خپل ژوند په پاتې موده کې د جمهوري رياست د دورې له مالي حقوقو څخه د قانون له حکمونو سره سم، گټه اخلي.

رئيس جمهور بعد از ختم دوره خدمت، به استثنای حالت عزل، برای بقيه مدت حيات از حقوق مالی دوره رياست جمهوری مطابق به احکام قانون مستفيد می شود.

## څلورم فصل
## حکومت

## فصل چهارم
## حکومت

**يواويايمه ماده:**

حکومت له وزيرانو څخه جوړ دی چې د جمهور رئيس تر رياست لاندې کار کوي. د وزيرانو شمير او وظايف د قانون له لياري تنظيميږي.

**مادهٔ هفتاد و يکم:**

حکومت متشکل است از وزرا که تحت رياست رئيس جمهور اجرای وظيفه می نمايند. تعداد وزرا و وظايف شان توسط قانون تنظيم می گردد.

**دوه اویایمه ماده :**
څوک چې د وزیر په توګه ټاکل کیږي باید لاندیني شرطونه ولري:

۱- یوازې د افغانستان د تابعیت لرونکی وي.

که چیرې د کوم وزارت کاندید د بل هېواد تابعیت هم ولري ولسي جرګه د هغه د تائید یا رد، صلاحیت لري؛

۲- لوړ تحصیلات، کاري تجربه او ښه شهرت ولري؛

۳- عمر یې تر پنځه دېرش کلونو لږ نه وي؛

۴- د محکمې له خوا د بشري ضد جرمونو او جنایت په ارتکاب او یا له مدني حقوقو څخه په محرومۍ محکوم شوی نه وي.

**دري اویایمه ماده :**
کېدای شي وزیران د ملي شوری له غړیو او یا له هغو د باندې وټاکل شي.

کله چې د ملي شوری غړی د وزیر په توګه وټاکل شي، په شوری کې خپل غړیتوب له لاسه ورکوي او د هغه

**مادۀ هفتاد و دوم:**
شخصی که به حیث وزیر تعیین می شود واجد شرایط ذیل می باشد:

۱- تنها حامل تابعیت افغانستان باشد.

هرگاه کاندید وزرات تابعیت کشور دیگری را نیز داشته باشد، ولسی جرگه صلاحیت تائید و یا رد آنرا دارد؛

۲- دارای تحصیلات عالی، تجربۀ کاری و شهرت نیک باشد؛

۳- سن وی از سی و پنج سال کمتر نباشد؛

۴- از طرف محکمه به ارتکاب جرایم ضد بشری، جنایت و یا حرمان از حقوق مدنی محکوم نشده باشد.

**مادۀ هفتاد و سوم:**
وزرا می توانند از اعضای شورای ملی یا خارج از آن تعیین شوند.

هرگاه عضو شورای ملی به حیث وزیر تعیین شود، عضویت خود را در شوری از دست میدهد و در عوض

پرځاي بل شـخص د قـانون له حکـم سره سـم ټاکل کيږي.

**څلور اويايمه ماده :**
وزيـران د وظـيـفـې لـه پـيـله مـخـکې د جـمـهـور رئـيـس پـه وړانـدې، لاندينۍ لوړه کـوي:

**بسم الله الرحمن الرحيم**

"د لـوی خـدای (ﷻ) پـه نامـه لـوړه کـوم چې د اسلام د سپېڅلي دين د حکمونو حمايـت، داساسـي قـانون او د افغانسـتان د نـورو قوانينـو رعايت، د اتباعو د حقوقو حفاظت د افغانستان د خپلـواکۍ، ځمکنۍ بشـپړتيا او د خلکو د ملي وحدت ساتنه وکړم او پـه خپلـو ټولـو اعمـالو کـې خـدای (ﷻ) حاضـر گـڼم او خپلـې راسپارل شـوې وظيفې پـه ربښتينولۍ سرته رسوم."

**پنځه اويايمه ماده :**
حکـومـت لانـدينـۍ وظيفـې لري:

۱- ددې اساسـي قـانـون او نـورو قوانينـو د احـکامـو او د مـحکمو د قطعي پرېکړو عملي کول؛

۲- د خپلـواکۍ سـاتل، لـه ځمکنـۍ بـشـپـړتيـا څخـه دفـاع او پـه نړيـواله ټـولنه کـې د افغانسـتان د حيثيـت او

وی شـخص ديگـری مطـابق بـه حکـم قانون تعـيين ميـگردد.

**مادۀ هفتاد و چهارم:**
وزرا قبـل از تصدی وظيفه حلـف آتی را بـه حضـور رئيس جمهـور، بـه جا می آورند:

**بسم الله الرحمن الرحيم**

"بـه نـام خداونـد بـزرگ (ﷻ) سوگند يـاد مـی کنم که ديـن مقدس اسلام را حمـايـت، قانون اساسی و سـاير قـوانين افغانستان را رعـايت، حقـوق اتبـاع را حفاظـت و از اسـتقلال، تماميـت ارضی و وحدت ملی مـردم افغانسـتان حراسـت کـنم و در همـه اعمـال خود خداوند (ﷻ) را حـاضـر دانسـته، وظـايف محـولـه را صادقانه انجام دهم."

**مادۀ هفتاد و پنجم:**
حکومت دارای وظايف ذيل می باشد:

۱- تـعـميـل احـکام ايـن قـانـون اساسـی و سـايـر قـوانين و فيصـله های قطعی محاکم؛

۲- حفـظ اسـتقلال، دفـاع از تـماميت ارضـی و صـيانت منافـع و حيـثيـت افغـانسـتـان در جـامـعـه

ګټهو ساتل؛

۳- د عامه نظم او امن ټینګول او د هر راز اداري فساد له منځه وړل؛

۴- د بودجې ترتیبول، د دولت د مالي وضعې تنظیمول او دعامه شتمنۍ ساتل؛

۵- دټولنیزو، فرهنګي، اقتصادي او تکنالوژیکي پرمختیایي پروګرامونو طرح او تطبیق؛

۶- ملي شورى ته د مالي کال په پاى کې د سرته رسیدلوچارو او د نوي مالي کا ل د مهمو پروګرامونو په باب ګزارش ورکول؛

۷- د هغو نورو وظیفو ترسره کول چې ددې اساسي قانون او نورو قوانینو له مخي د حکومت له وظیفو څخه ګڼل شویدي.

**شپږ اویایمه ماده :**

حکومت د هېواد د سیاست د اساسي کرښو د تطبیق او دخپلو وظیفو د تنظیمولو لپاره مقررات وضع او تصویبوي. دا مقررات باید د هیڅ قانون له نص یا روح سره مناقض نه وي.

بین المللی؛

۳- تأمین نظم و امن عامه و از بین بردن هر نوع فساد اداری؛

۴- ترتیب بودجه، تنظیم وضع مالی دولت و حفاظت دارایی عامه؛

۵- طرح و تطبیق پروگرام های انکشافی اجتماعی، فرهنگی، اقتصادی و تکنالوژیکی؛

۶- ارائه گزارش به شورای ملی در ختم سال مالی درباره امور انجام شده و پروگرام های عمدهٔ سال مالی جدید ؛

۷- انجام سایر وظایفی که به موجب این قانون اساسی و قوانین دیگر از وظایف حکومت دانسته شده است.

**مادهٔ هفتاد و ششم:**

حکومت برای تطبیق خطوط اساسی سیاست کشور و تنظیم وظایف خود مقررات وضع و تصویب می کند. این مقررات باید مناقض نص یا روح هیچ قانون نباشد.

**اوه اویایمه ماده :**

وزیران خپل وظایف د اداري واحدونو د آمرینو په توگه په هغو حدودوکې چې دا اساسي قانون او نور قوانین یې ټاکي، سرته رسوي.

وزیران له خپلو ټاکلو وظایفو څخه د جمهور رئیس او ولسي جرگې په وړاندې مسئولیت لري.

**اته اویایمه ماده:**

که چېرې وزیر په بشري ضد جرمونو، ملي خیانت او یا په نورو جرمونو متهم شي، موضوع ددې اساسي قانون د (یو سلو څلور دېرشمې) مادې په رعایت ځانگړې محکمې ته سپارل کېږي.

**نهه اویایمه ماده :**

حکومت کولای شي د ولسي جرگې د تعطیل په حالت کې له بودجې او مالي چارو پرته، د بیړنۍ اړتیا پر اساس تقنیني فرمانونه ترتیب کړي.

تقنیني فرمانونه د جمهور رئیس تر توشیح وروسته د قانون حکم پیدا کوي. تقنیني فرمانونه باید د ملي شورى د لومړۍ غونډې ترجوړېدو وروسته د دېرشو ورځو په اوږدو کې

**مادهٔ هفتاد و هفتم:**

وزرا وظایف خود را به حیث آمرین واحدهای اداری در داخل حدودی که این قانون اساسی و سایر قوانین تعیین می کند، اجرا می نمایند.

وزرا از وظایف مشخصهٔ خود نزد رئیس جمهور و ولسی جرگه مسئولیت دارند.

**مادهٔ هفتاد و هشتم:**

هرگاه وزیر به ارتکاب جرایم ضد بشری، خیانت ملی و یا سایر جرایم متهم گردد، قضیه با رعایت مادهٔ یکصد و سی و چهارم این قانون اساسی به محکمهٔ خاص محول میگردد.

**مادهٔ هفتاد و نهم:**

حکومت می تواند در حالت تعطیل ولسی جرگه در صورت ضرورت عاجل، به استثنای امور مربوط به بودجه و امور مالی، فرامین تقنینی را ترتیب کند.

فرامین تقنینی بعد از توشیح رئیس جمهور حکم قانون را حایز می شود. فرامین تقنینی باید در خلا ل سی روز از تاریخ انعقاد نخستین جلسهٔ شورای ملی به آن تقدیم شود و در

هغې ته ورانده‌ې شي او که د ملي شورى له خوا رد شي، اعتبار نه لري.

صورتی که از طرف شورای ملی رد شود، از اعتبار ساقط میگردد.

**اتيايمه ماده:**
وزيران نشي کولای د خپل کار په دوران کې له خپل مقام څخه په ژبنيو، سيمه ييزو، قومي، مذهبي او گوندي ملحوظاتو گټه واخلي.

**مادهٔ هشتادم:**
وزرا نمی توانند در زمان تصدی وظیفه از مقام خود به ملحوظات لسانی، سمتی، قومی، مذهبی و حزبی استفاده نمایند.

## پنځم فصل
## ملي شورى

## فصل پنجم
## شورای ملی

**يواتيايمه ماده :**
د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت ملي شورى د ستر تقنيني اورگان په توگه د افغانستان د خلکو د ارادې ښکارندويه ده او د ټول ملت نمايندگي کوي.

**مادهٔ هشتاد ویکم:**
شورای ملی دولت جمهوری اسلامی افغانستان به حیث عالی ترین ارگان تقنینی مظهر ارادهٔ مردم آن است و از قاطبهٔ ملت نمایندگی می کند.

د شورى هر غړي درايې د څرگندونې په وخت کې، د افغانستان د خلکو عمومي مصلحتونه او سترې گټې د خپل قضاوت محور ټاکي.

هر عضو شوری در موقع اظهار رای، مصالح عمومی و منافع علیای مردم افغانستان را مدار قضاوت قرار می دهد.

**دوه اتيايمه ماده :**
ملي شورى له دوو مجلسونو: ولسي جرگې او مشرانو جرگې څخه جوړه ده.

**مادهٔ هشتاد و دوم :**
شورای ملی متشکل از دو مجلس: ولسی جرگه و مشرانو جرگه می باشد.

هيڅوک نشي کولای په يوه وخت کې د دواړو مجلسونو غړى وي.

هیچ شخص نمی تواند در یک وقت عضو هر دو مجلس باشد.

**دري اتيايمه ماده:**

د ولسي جرگې غړي د خلکو د آزادو، عمومي، پټو او مستقيمو انتخاباتو له لارې انتخابېږي.

د ولسي جرگې د کار دوره د پنځم کال د چنگاښ په لومړۍ نېټه د انتخاباتو د نتيجو د اعلان څخه وروسته پای ته رسېږي او نوې شوری په کار پيل کوي.

د ولسي جرگې د دورې ترختمېدو د مخه له دېرشو څخه ترشپيتو ورځو پورې موده کې د ولسي جرگې د غړيو انتخابات کېږي.

د ولسي جرگې د غړيو شمير د هرې حوزې د نفوسو د شمېر په تناسب زيات نه زيات تر (۲۵۰) کسانو پورې دی.

انتخاباتي حوزې او ورسره نور مربوط مسايل د انتخاباتو په قانون کې ټاکل کېږي.

د انتخاباتو په قانون کې بايد داسې تدبيرونه ونيول شي چې انتخاباتي نظام د افغانستان د ټولو خلکو لپاره عمومي او عادلانه استازيتوب تأمين کړي او د نفوسو په تناسب دې له هر ولايت څخه په اوسط ډول لږ تر لږه دوه

**مادۀ هشتاد سوم:**

اعضای ولسی جرگه توسط مردم از طريق انتخابات آزاد، عمومی، سری و مستقيم انتخاب می گردند.

دوره کار ولسی جرگه به تاريخ اول سرطان سال پنجم، بعد از اعلان نتايج انتخابات به پايان می رسد و شورای جديد به کار آغاز می نمايد.

انتخابات اعضای ولسی جرگه در خلال مدت سی الی شصت روز قبل از پايان دوره ولسی جرگه برگزار می گردد.

تعداد اعضای ولسی جرگه به تناسب نفوس هر حوزه حداکثر دو صدو پنجاه نفر می باشد.

حوزه های انتخاباتی و ساير مسايل مربوط به آن در قانون انتخابات تعيين می گردد.

در قانون انتخابات بايد تدابيری اتخاذ گردد که نظام انتخاباتی، نمايندگی عمومی و عادلانه را برای تمام مردم کشور تأمين نمايد و به تناسب نفوس از هر ولايت طور اوسط

ښځينه وکيلې په ولسي جرګه کې غړيتوب ترلاسه کړي.

**څلور اتيايمه ماده :**
د مشرانو جرګې غړي په لاندې ډول انتخاب او ټاکل کېږي:

۱- د هرې ولايتي جرګې له غړيو څخه يوتن د مربوطې جرګې په انتخاب، د څلورو کلونو لپاره ؛

۲- د هر ولايت د ولسواليو د جرګو له غړيو څخه يو تن، د مربوطو جرګو په انتخاب، د دريو کلونو لپاره؛

۳- پاتې دريمه برخه غړي دمعلولينو او معيوبينو د دوو تنو او کوچيانو د دوو تنو استازيو په ګډون د هېواد له خبيرو او تجربه لرونکو کسانو څخه د پنځو کلونو لپاره د جمهور رئيس له خوا ټاکل کېږي.

جمهور رئيس له دې اشخاصو څخه په سلوکې پنځوس ښځې ټاکي.

هغه شخص چې د مشرانو جرګې د غړي په توګه انتخابېږي په مربوطه جرګه کې خپل غړيتوب له لاسه ورکوي او د ده پرځای د قانون له حکمونو سره

حداقل دو وکیل زن در ولسی جرگه عضویت یابد.

**مادۀ هشتاد و چهارم:**
اعضای مشرانو جرگه به ترتیب ذیل انتخاب و تعیین می شوند:

۱- از جمله اعضای شورای هر ولایت، یک نفر به انتخاب شورای مربوط برای مدت چهار سال؛

۲- از جملۀ اعضای شورا های ولسوالیهای هر ولایت، یک نفر به انتخاب شوراهای مربوط برای مدت سه سال؛

۳- یک ثلث باقی مانده از جملۀ شخصیت های خبیر و با تجربه به شمول دو نفر از نمایندگان معلولین و معیوبین و دو نفر نمایندگان کوچی ها به تعیین رئیس جمهور برای مدت پنج سال.

رئیس جمهور تعداد پنجاه فیصد از این اشخاص را از بین زنان تعیین می نماید.

شخصی که به حیث عضو مشرانو جرگه انتخاب می شود، عضویت خود را در شورای مربوطه از دست داده، به عوض او شخص دیگری مطابق به

سم بل شخص ټاکل کېږي.

**پنځه اتيايمه ماده :**
هغه څوک چې د ملي شورى غړيتوب ته کانديد يا ټاکل کيږي، د ټاکونکو پر شرطونو سربيره، دا لاندې صفتونه هم ولري:

۱- د افغانستان تبعه وي يا لږ تر لږه د کانديديدو يا تعيين تر نېټې لس کاله پخوا يې د افغانستان د دولت تابعيت ترلاسه کړى وي؛

۲- د محکمې له خوا د بشري ضد جرمونو، او جنايت په ارتکاب او يا له مدني حقوقو څخه په محرومۍ محکوم شوى نه وي؛

۳- د ولسي جرگې غړيو د کانديديدو په ورځ د عمر پنځه ويشت کاله او د مشرانو جرگې غړيو د کانديديدو يا ټاکني په ورځ د عمر پنځه دېرش کاله بشپړ کړي وي.

**شپږ اتيايمه ماده :**
د ملي شورى د غړيو انتخاباتي وثيقې، د انتخاباتو د څارنې د خپلواک کمېسيون له خوا د قانون له حکمونو سره سم څېړل کېږي.

احکام قانون تعيين ميگردد.

**مادۀ هشتاد و پنجم:**
شخصى که به عضويت شوراى ملى کانديد يا تعيين مى شود، علاوه بر تکميل شرايط انتخاب کنندگان واجد اوصاف ذيل مى باشد:

۱- تبعۀ افغانستان بوده يا حداقل ده سال قبل از تاريخ کانديد يا تعيين شدن تابعيت دولت افغانستان را کسب کرده باشد؛

۲- از طرف محکمه به ارتکاب جرايم ضد بشرى، جنايت و يا حرمان از حقوق مدنى محکوم نشده باشد؛

۳- اعضاى ولسى جرگه سن بيست و پنج سالگى را در روز کانديد شدن و اعضاى مشرانو جرگه سن سى و پنج سالگى را در روز کانديد يا تعيين شدن تکميل کرده باشند.

**مادۀ هشتاد و ششم:**
وثايق انتخاباتى اعضاى شوراى ملى توسط کميسيون مستقل انتخابات مطابق به احکام قانون تدقيق مى گردد.

**اوه اتیایمه ماده :**
د ملي شورى لـه دواړو جرگو څخه هره یوه دکار د دورې په پیل کې لـه خپلو غړیو څخه یو تـن د رئیس په توگه د یـوې تقنینـي دورې لپـاره، دوه تنـه د لومړي نایب او دویم نایب او دوه تنه د منشي او د منشي د نایب په توگه، د یوکال لپاره انتخابوي.

دا اشخاص د ولسي جرگې او مشـرانو جـرگې اداري هیئت جوړوي.

د اداري هیـئـت وظیفـې د هـرې جرگې د داخلي وظایفو په اصولـو کې ټاکلي کېږي.

**اته اتیایمه ماده:**
د ملي شورى له، دواړو جرگو څخه هره یـوه د بحث وړ موضوعاتو د کتنې لپـاره د داخلـي وظـایفو د اصـولو لـه مخي کمېسیونونه جوړوي.

**نهه اتیایمه ماده :**
ولسي جرگه واک لري د غړیو د دریمې برخې په پیشنهاد، د حکومت د اعمالو د څیړنې او کتنې لپـاره، یـو ځـانگړی کمېسیون و ټاکي.

ددې کمېسـیون جوړښت او کـړنلاره د ولسـي جرگـې د داخلـي وظـایفو پـه اصولو کې تنظیمېږي.

**مادهٔ هشتاد و هفتم :**
هر یک از دو مجلس شورای ملی، در آغـاز دورهٔ کـار، یـک نفـر از اعضـای خود را به حیث رئیس برای یک دوره تقنینیه و دو نفر را به حیث نایب اول و نایب دوم و دو نفر را به حیث منشی و نایـب منشـی بـرای مـدت یکسـال انتخاب می کند.

این اشخاص هیئت اداری ولسی جرگه و مشرانو جرگه را تشکیل می دهند.

وظـایف هیـئت اداری در اصـول وظـایـف داخلـی هـر مجلـس تعیـین مـی شود.

**مادهٔ هشتاد و هشتم:**
هر یکـی از دو مجلـس شورای ملـی بـرای مطالعـه موضـوعات مـورد بحـث، بر طبق اصول وظایف داخلی، کمیسیون ها تشکیل می دهد.

**مادهٔ هشتاد و نهم:**
ولسـی جرگـه صـلاحیت د ارد بـه پیشنهـاد یـک ثلـث اعضـا، جهـت بررسـی و مطالعـهٔ اعمـال حکومـت، کمیسیون خاص تعیین نماید.

ترکیب و طرز العمل این کمیسیون در اصـول وظـایف داخلـی ولسـی جرگـه تنظیم می گردد.

**نوي يمه ماده :**
ملـــــي شــــورى دا لانــــدې واكــونه لـري:

۱- د قوانينــو او تقنينـــي فرمـــانونو تصويب، تعديل يا لغو كول؛

۲- د ټولنيزو، فرهنگي، اقتصادي او تـكـنـالـوژيـكـــي پرمختيـــايي پروگرامونو تصويب؛

۳- د دولتي بـودجې تصويب او د پـور اخيستو يا وركولو اجازه؛

۴- د اداري واحـدونو منځتــه راوړل، تعديل او يا لغو كول؛

۵- د دولـــتونو تـرمنځ د تړونونـو او بين المللي ميثاقونو تصديق او يا لـه هغو څخه د افغانستان بيلول؛

۶- پـه دي اساســي قــانون كـې نــور مندرج واكونه.

**يونوي يمه ماده :**
ولســي جرگــه لانــدې ځانگـــړي واكونه لري:

۱- لـــه هـــر يـــوه وزيـــر څخـــه د استيـضاح پـه برخـه كې ددې اساسي قـانون د دوه نـوي يمې مـادې لـه حكم سره سم تصميم نيول؛

**مادۀ نودم:**
شـــوراى مـلـى داراى صلاحيـتهـاى ذيـل ميبـاشد:

۱- تصويب، تعديل يا لغو قوانين و يا فرامين تقنينى؛

۲- تـصويـــــب پـروگرامهـــــاى انـــكشافى اجتمـــاعى، فرهنگـــى، اقتصادى وتكنالوژيكى؛

۳- تصويب بودجۀ دولتى و اجازه اخذ يا اعطاى قرضه؛

۴- ايجاد واحدهاى ادارى، تعديل و يا الغاى آن؛

۵- تصديــــــق معاهــــــدات و ميثـاقـهـاى بـين المللـى يـا فسـخ الحاق افغانستان به آن؛

۶- سـاير صـلاحيتهاى منـدرج ايـن قانون اساسى.

**مادۀ نود و يكم:**
ولســـى جرگــه داراى صـــلاحيتهاى اختصاصى ذيل مى باشد:

۱- اتـخـــاذ تصـــميم در مـــورد استيضاح از هـــر يک از وزرا مطابق بـه حكـم مـــادۀ نــود و دوم ايــــن قانون اساسى؛

۲- د پرمختيـــايي پروگرامونـــو او دولتـــي بـودجـــې پـه بـاب تصـميم نيول؛

۳- ددې اساسي قانون له حکمونو سره سم د مقرريو تاييد يا ردول؛

**دوه نوي يمه ماده :**

ولســي جرگــه د ټولــو غړيــو د شــلو فيصدو په پيشنهاد کولای شي، له هر يوه وزير څخه استيضاح وکړي.

که ورانـدې شـوې توضـيح د قناعـت وړ نـه وي، ولسـي جرگـه د نـه بـاور د راى موضوع څېړي.

پـه وزير بانـدې د نه باور رايه بايـد صريحــه، مســتقيمــه او پــر پـخــو دلايـلــو ولاړه وي، دغـه رايـه د ولــسي جرگــې د ټولــو غړيــو د رايــو پــه اکثريت صادرېږي.

**دري نوي يمه ماده :**

د ملــي شــورى د دواړو جرگـو هـر يـو کميسـيون کـولای شـي لــه هــر يــوه وزيـر څـخه پـه ټـاکلو موضوعاتو کې پوښتنې وکړي.

هغـه څـوک چــې پـوښـتـنـه تـرې شـوې کــولای شـــي شفاهـــي يــا ليــکلي ځـواب ورکړي.

۲- اتـخـــاذ تصميـــم راجـــع بـــه پـروگـــرامهای انکشـــافی و بودجـــۀ دولتی؛

۳- تائيـد يـا رد مقرريهـا مطـابق بـه احکام اين قانون اساسی؛

**مادۀ نود و دوم:**

ولسی جرگه به پيشنهاد بيست فيصد کل اعضا ، می تواند از هر يک از وزرا استيضاح به عمل آورد .

هرگاه توضيح ارائه شده قناعت بخش نباشد ، ولسی جرگه موضوع رای عدم اعتماد را بررسی می کند .

رای عـــدم اعتمـــاد از وزيـــر بايـــد صـريح، مسـتقيم و بـر اسـاس دلايـل مـؤجـه بـاشـد . ايـــن رای بـه اکثريت ارای کــل اعضـــای ولســـی جـرگـــه صادر ميگردد .

**مادۀ نود و سوم:**

هـــر يـــک از کمـــيسيونهای هـــر دو مجلس شورای مـــلی می تواند از هر يـــک از وزرا در موضـــوعا ت معـــين سوال نمايد .

شخـصـــی کـــه از او ســـوال بـــه عـمــل آمـده، مـی تـوانـد جـواب شفـاهـی يـا تحريری بدهد .

**څلور نوي يمه ماده :**
قانون هغه مصوبه ده چې د ملي شورى د دواړو جرګو له خوا تصويب او د جمهور رئيس له خوا توشيح شوې وي، مګر دا چې په دې اساسي قانون کې بل ډول څرګنده شوې وي.

که جمهور رئيس د ملي شورى له مصوبي سره موافقه ونه لري کولای شي چې د وړاندې کېدو تر نېټې وروسته يې په پنځلسو ورځو کې د دلايلو له ښوولو سره ملي شورى ته مسترده کړي. ددې وخت په تېرېدو او يا دا چې ولسي جرګه يو ځل بيا هغه د ټولو غړيو له دريوو برخو څخه په دوو برخو رايو تصويب کړي، مصوبه توشيح شوې ګڼله کېږي او نافذ ېږي.

**پنځه نوي يمه ماده :**
د قانون د طرحې پيشنهاد د حکومت يا دشورى د غړيو او دقضايي چارو د تنظيم په برخه کې د سترې محکمې له خوا د حکومت له لياره وړاندې کېدای شي.

د بودجې او مالي چارو په برخه کې د قانون د طرحې پيشنهاد يوازې د حکومت له خوا کېږي.

**مادۀ نود و چهارم :**
قانون عبارت است از مصوبه هر دو مجلس شورای ملی که به توشیح رئیس جمهور رسیده باشد، مگر اینکه در این قانون اساسی طور دیگری تصریح گردیده باشد.

در صورتیکه رئیس جمهور با مصوبۀ شورای ملی موافقه نداشته باشد می تواند آنرا در ظرف پانزده روز از تاریخ تقدیم با ذکر دلایل به ولسی جرگه مسترد نماید. با سپری شدن این مدت و یا در صورتی که ولسی جرگه آنرا مجدداً با دو ثلث آرای کل اعضا تصویب نماید، مصوبه توشیح شده محسوب و نافذ میگردد.

**مادۀ نود وپنجم:**
پیشنهاد طرح قانون از طرف حکومت یا اعضای شوری و در ساحه تنظیم امور قضایی از طرف ستره محکمه توسط حکومت صورت گرفته می تواند.

پیشنهاد طرح قانون در مورد بودجه و امور مالی صرف از طرف حکومت صورت میگیرد.

**شپږ نوي یمه ماده :**

که د قانون د طرحې پیشنهاد پر دولت د نوي تکلیف یا د عایداتو د لږولو لرونکی وي، په دې شرط د کار په فهرست کې نیول کېږي چې د پیشنهاد په متن کې د جبرانولو مدرک هم پیشبیني شوی وي.

**اوه نوي یمه ماده :**

د حکومت له خوا د قانون د طرحې پیشنهاد لومړی ولسي جرگې ته وړاندې کېږي.

ولسي جرگه د بودجې او مالي چارو په شمول د قانون د طرحې پیشنهاد او د پور اخیستو او یا ورکولو پیشنهاد له بحث وروسته دیو کل په توگه تصویب یا ردوي.

ولسي جرگه نشي کولای وړاندې شوې طرح تر یوې میاشتې زیات وځنډوي.

ولسي جرگه د پیشنهاد شوي قانون طرح تر تصویب وروسته مشرانو جرگې ته سپاري.

مشرانو جرگه د پنځلسو ورځو په اوږدو کې د هغه په باره کې تصمیم نیسي.

**مادۀ نود و ششم:**

هرگاه پیشنهاد طرح قانون حاوی تکلیف جدید یا تنقیص در عایدات دولت باشد، به شرطی در فهرست کار داخل می شود که در متن پیشنهاد، مدرک جبران نیز پیش بینی شده باشد.

**مادۀ نود و هفتم:**

پیشنهاد طرح قانون از طرف حکومت نخست به ولسی جرگه تقدیم می گردد.

ولسی جرگه پیشنهاد طرح قانون را، به شمول بودجه و امور مالی و پیشنهاد اخذ و یا اعطای قرضه را، بعد از بحث به صورت یک کل تصویب یا رد می کند.

ولسی جرگه نمی تواند طرح پیشنهاد شده را بیش از یک ماه به تاخیر اندازد.

ولسی جرگه طرح قانون پیشنهاد شده را بعد از تصویب به مشرانو جرگه می سپارد.

مشرانو جرگه در ظرف پانزده روز در مورد آن تصمیم اتخاذ می کند.

ملـي شـورى د دولـت د هغـو قوانينـو، معاهدو او پرمختيـايي پروگرامونـو پـه باره کې تصميم نيـــولو ته لومړيتوب ورکـوي چـې د حکومـت د وړانـديز پـه بنسټ د عاجل غور غوښتنه کوي.

که چيرې د قانون د طرحې پيشنهاد لـه دوارو جرگو څخه ديوې د لسو غړيو لـه خوا وشي، پيشنهاد د نوموړې جرگې د يـو پـر پنځمـې برخـې غړيـو تـر تائيـد وروسـته د همـاغې جرگـې د کـار پـه فهرست کې نيول کېږي.

**اته نوي يمه ماده :**

د دولـــت بودجـــه او د حکومـــت پرمـختيـايـــې پروگـــرام د مشـرانـــو جرگـــې لـــه ليـــارې ددې جرگـــې لـــه مشورتـي نظريـي سره يوځـای ولسـي جرگې ته سپارل کېږي.

د ولسي جرگې تصميم د جمهور رئيس تـر توشيح وروسـته، مشـرانو جرگې تـه تر وړاندي کېدو پرته، نافذ گڼل کېږي.

کـه چېـرې د ځيـنـو عـواملـو لـــه مخې د مالي کـال تـر پيـل مخکـې بـودجـه تـصـويـب نشـي، د نـوې بودجـې تـر تصويـب پـورې، د تېـر کـال بـودجـه تطبيقېږي.

شورای ملی به اتخاذ تصميم در مـورد طرح قوانين، معاهدات و پروگرامهای انکشافی دولت که به اساس پيشـنهاد حکومـت ايجـاب رسيد گی عاجـل را نمايد اولويت می دهد.

هرگـاه پيشـنهاد طرح قـانون از طـرف ده نفـر از اعضـای يکـی از دو مجلـس صورت گيرد، بعـد از تائيـد يک پـنجم اعضـای مجلسی که پيـشنهاد بـه آن ارائـه شده است، در فهرسـت کـار آن مجلس داخل ميگردد.

**مادۀ نود و هشتم:**

بـودجـــۀ دولـــت و پروگـــرام انکـشافـــی حکومـــت از طريـــق مشـــرانو جرگـــه تـوأم بـا نظريـۀ مشـــورتـــی آن بـــه ولســی جرگـه تقديم می شود.

تـصميم ولسـی جرگـه بـدون ارائه بـه مـشرانو جرگه بعد از توشيـح رئيس جمهور نافذ شمرده می شود.

هـرگاه نـظـر بـه عـواملـی تصويـب بـودجـه قبـل از آغـاز سـال مـالی صورت نگيرد، تـا تـصويـب بودجـه جديـد، بـودجـۀ ســال گـذشتـه تطبيق ميگردد.

حکومت د مالي کا ل د څلورمې ربعې په اوږدو کې د راتلونکي کال بودجه د روان کا ل د بودجې له اجمالي حساب سره ملي شورى ته وړاندې کوي . د تېر مالي کا ل د بودجې قطعي حساب د راتلونکي کا ل د شپږو میاشتو په موده کې د قانون له حکمونو سره سم ملي شورى ته وړاندې کېږي.

حکومت در خلا ل ربع چهارم سال مالی، بودجۀ سال آینده را با حساب اجمالی بودجه سال جاری به شورای ملی تقدیم می نماید. حساب قطعی بودجه سال مالی قبل، در خلا ل مدت شش ماه سال آینده، مطابق به احکام قانون، به شورای ملی تقدیم میگردد.

ولسي جرگه نشي کولای د بودجې تصویب له یوې میاشتې څخه زیات او د هغه پور د اخیستو او ورکولو اجازه چې په بودجه کې شامل نه وي، تر پنځلس ورځو زیات وځنډوي.

ولسی جرگه نمی تواند تصویب بودجه را بیش از یکماه و اجازه اخذ و یا اعطای قرضه را که شامل بودجه نباشد، بیش از پانزده روز به تأخیر اندازد.

که چېرې ولسي جرگه په دغه موده کې د پور د اخیستو او ورکولو د پیشنهاد په اړه تصمیم ونه نیسي، پیشنهاد تصویب شوی گڼل کېږي.

هرگاه ولسی جرگه در این مدت راجع به پیشنهاد اخذ و یا اعطای قرضه تصمیم اتخاذ نکند، پیشنهاد تصویب شده محسوب میگردد.

**نهه نوي یمه ماده :**

که چېرې د ملي شورى په اجلاس کې کلنۍ بودجه یا پرمختیایي پروگرام یا له عامه امنیت، دهېواد له خپلواکۍ او ځمکنۍ بشپړتیا سره مربوطه موضوع تر خبرو لاندې وي، د شورى د اجلاس موده د هغې تر تصویب مخکې پای ته نشي رسېدلای.

**مادۀ نود و نهم:**

در صورتی که در اجلاس شورای ملی، بودجه سالانه یا پروگرام انکشافی یا موضوع مربوط به امنیت عامه، تمامیت ارضی و استقلال کشور مطرح باشد مدت اجلاس شوری قبل از تصویب آن خاتمه یافته نمی تواند.

**سلمه ماده:**
کـه چېـرې د ېـوې جرگـې مصوبـه د بلې جرگې لـه خوا رد شي، د اختلاف د له منځه وړلو لپاره د دواړو جرگو د غړيو لـه خوا په برابر شمير گډ هيئت تاکل کېږي.

د هيئـت پريکـړه د جمهـور رئـيس تـر توشيح وروسته نافذه گڼل کېږي. کـه گډ هيئت ونه کړای شي د نظر اختلاف له منځه يوسي، تصويب رد شوي گڼل کېږي. پـه دې حالـت کـې ولسـي جرگـه کولای شي په خپله ورپسې غونډه کې هغه د خپلو ټولو غړيـو لـه دريـو څخه د دوو برخـو د رايـو پـه اکثريـت تصـويب کړي. دا تصويب بې له دې چې مشرانو جرگې ته وړاندې شي، د جمهور رئـيس تر توشيح وروسته نافذ گڼل کېږي.

**يو سلو يوومه ماده :**
د ملي شورى هيڅ غړی د هغې رايې يا نظريې له امله چې د وظيفې د اجرا پـه وخـت کـې يـې څرگنـدوي، تـر عـدلي تعقيب لاندې نه نيول کېږي.

**يوسلو دوه يمه ماده :**
که د ملي شورى غړی په يوه جرم متهم شي، مسئول مـامور لـه موضـوع څخـه هغې جرگې ته چې متهم يـې غـړی دی، خبر ورکـوي او مـتهم تـر عـدلي تعقيب

**مادهٔ صدم:**
هرگـاه مصـوبهٔ يـک مجلـس از طـرف مجلـس ديگـر رد شـود، بـراى حـل اخـتلاف هيئـت مخلـتط بـه تعـداد مسـاوى از اعضـاى هـر دو مجلـس تشکيل مى گردد.

فيصـله هيئـت بعـد از توشـيح رئـيس جمهـور، نافـذ شـمرده ميشـود. در صـورتيـکه هيئـت مخـتلط نتـوانـد اختلاف نـظر را رفـع کنـد، مصـوبـه رد شـده بـه حساب مـى رود. در ايـن حالـت ولسـى جـرگـه مـى تـوانـد در جـلســهٔ بعـدى آنـرا بـا دو ثلـث آراى کـل اعضـا تصـويب کنـد. ايـن تصويـب بـدون ارائـه بـه مشرانـو جـرگـه بعد از توشيح رئيس جمهـور نــافذ شمرده مى شــود.

**مادهٔ يکصد و يکم:**
هيچ عضـو شوراى ملى بـه علت راى يـا نظريـه اى کـه در هنگـام اجـراى وظيفـه ابـراز مـى دارد مـورد تعقيـب عدلى قرار نمى گيرد.

**مادهٔ يکصد و دوم:**
هرگاه عضـو شـوراى ملـى بـه جـرمى متهم شـود، مامور مسئول از موضـوع بـه مجلسـى کـه مـتهم عضـو آن اسـت اطلاع مى دهد و مـتهم تحت تعقيـب

لاندې راتلای شي.

د مشهود جرم په مورد کې، مسئول مامور کولای شي متهم د هغې جرګې له اجازې پرته چې دی يې غړی دی تر عدلي تعقيب لاندې راولي او وي نيسي.

په دواړو حالاتو کې که عدلي تعقيب د قانون له مخې د توقيف ايجاب وکړي، مسئول مامور مکلف دی چې له موضوع څخه بې له ځنډه نوموړې جرګې ته خبر ورکړي او تصويب يې ترلاسه کړي.

که اتهام د شورى د رخصتۍ په وخت کې رامنځ ته شي، د نيولو او توقيف اجازه د مربوطې جرګې له اداري هيئت څخه ترلاسه کېږي او موضوع د نوموړې جرګې لومړنۍ غونډې ته د تصميم نيولو لپاره وړاندې کېږي.

**يوسلو دريېمه ماده :**

وزيران کولای شي د ملي شورى له دوو جرګو څخه د هرې يوې په غونډو کې ګډون وکړي.

د ملي شورى هره جرګه کولای شي خپلې غونډې ته د وزيرانو د حاضريدو غوښتنه وکړي.

عدلی قرار گرفته می تواند.

در مورد جرم مشهود، مامور مسئول می تواند متهم را بدون اجازه مجلسی که او عضو آن می باشد تحت تعقیب عدلی قرار دهد و گرفتار نماید.

در هر دو حالت، هرگاه تعقیب عدلی قانوناً توقیف را ایجاب کند، مامور مسئول مکلف است موضوع را بلا فاصله به اطلاع مجلس مربوط برساند وتصویب آنرا حاصل نماید.

اگر اتهام در هنگام تعطیل شوری صورت بگیرد، اجازۀ گرفتاری یا توقیف از هیئت اداری مجلس مربوط حاصل می گردد و موضوع به نخستین جلسۀ مجلس مذکور جهت اخذ تصمیم ارائه می شود.

**مادۀ یکصد وسوم:**

وزرا می توانند در جلسات هر یک از دو مجلس شورای ملی اشتراک ورزند.

هر مجلس شورای ملی می تواند حضور وزرا را در جلسۀ خود مطالبه کنند.

**يوسلو ځلورمه ماده :**
د ملـــي شـــوری دواړې جـرگــې پــه عيـــن وخـــت کـــې، بېـــل بېـــل مجلسونه کوي.

د دواړو جرگو گډې غونډې په لاندې حالاتو کې جوړېدلای شي:

۱- کلـه چـې تقنينيـه دوره يـا کلنـۍ غونـــډه د جمهـــور رئـــيس لـــه خـــوا پرانيستل کېږي؛

۲- پـه هغـه صـورت کـې چـې جمهـور رئيس يې ضروري تشخيص کړي؛

د ولســـــي جـــرگـــــې رئيـــــس د مـلـــــي شـــوری د گـــډو غـــونډو مـشري کوي.

**يوسلو پنځمه ماده :**
د ملي شوری غونډې علني دي، مگر دا چې د مجلس رئيس يا لږ تر لږه د ملي شوری لس تنه غړي يې د سري تـــوب پيشـــنهاد وکـــړي او جرگـــه دا پيشنهاد ومني.

هېڅوک نشي کولای چې په زور د ملي شوری ودانۍ ته ننوزي.

**يوسلو شپږمه ماده :**
د ملي شـوری د هـر مجلس نصـاب د

**مادهٔ يکصدو چهارم:**
هـر دو مـجلس شـورای ملی در وقت واحـــد بـــه صـــورت جـدا گانـــه جلسـه می کنند.

جلسات هردو مجلس در موارد ذيل می تواند به طور مشترک داير شود:

۱- در مـوقعی کـه دورهٔ تقنينيـه يـا اجلاس سالانه از طرف رئيس جمهور افتتاح می گردد؛

۲- در صـــورتيکه رئـــيس جمهـــور ضروری تشخيص دهد؛

رئيـس ولـسـی جـرگـه، از جلسـات مـشـتـرک شـورای مـلـی ريـاسـت می نـــمايد.

**مادهٔ يکصدوپنجم:**
جلسات شورای ملی علنی می باشد مگر اينکه رئيس مجلس يا حد اقل ده نفـر از اعضـای شـورای ملـی، سـری بودن آنرا درخواست نمايند و مجلس اين درخوست را بپذيرد.

هيچ شخصی نمی تواند عنفاً به مقر شورای ملی داخل شود.

**مادهٔ يکصد و ششم:**
نـصاب هـر يک از دو مجلس شـورای

رایو د اخیستو په وخت کې د هرې جرگې د غړیو د اکثریت په حضور بشپړیږي او تصمیمونه یې د حاضرو غړیو د رایو په اکثریت نیول کېږي، مگر په هغو مواردو کې چې دې اساسي قانون بل ډول تصریح کړې وي.

ملی، هنگام رای گیری با حضور اکثریت اعضا تکمیل می گردد و تصامیم آن با اکثریت آرای اعضای حاضر اتخاذ می شود، مگر در مواردی که این قانون اساسی طور دیگری تصریح نموده باشد.

**یوسلو اوومه ماده :**

ملي شوری په کال کې دوې عادي غونډې دایروي.

**مادۀ یکصد و هفتم:**

شورای ملی در هر سال دو اجلاس عادی دایر می کند.

د ملي شوری د دواړو جرگو د غونډو د کار موده په کا ل کې نهه میاشتې ده. د اړتیا په وخت کې شوری کولای شي دا موده اوږده کړي.

مدت کار هر دو اجلاس شورای ملی، در هر سال نه ماه می باشد. در صورت ایجاب، شوری می تواند این مدت را تمدید کند.

د رخصتیو په ورځو کې د ملي شوری فوق العاده غونډې د جمهور رئیس په امر دایرېدای شي.

جلسات فوق العاده شورای ملی در ایام تعطیل به امر رئیس جمهور دایر شده می تواند.

**یوسلو اتمه ماده :**

د ملــي شــوری د غــړي د مړینــې، استعفی، عزل او یا د داسي معلولېدو او معیوبېدو په صورت کې چې په دایمي توگه د وظیفي د اجراء خنډ شي، د پاتې تقنینیه دورې لپاره د نوي استازي تعیین د قانون له حکمونو سره سم ترسره کېږي.

**مادۀ یکصد و هشتم:**

در حالات وفات، استعفا و عزل عضو شورای ملی و یا معلولیت یا معیوبیتی که به طور دایم مانع اجرای وظیفه گردد، تعیین نماینده جدید برای مدت باقی مانده دورۀ تقنینیه، مطابق به احکام قانون صورت میگیرد.

د ملي شوری د غړیو د حاضرېدو یا نه راتلو سره مربوطې چارې د داخلي

امور مربوط به حضور و غیاب اعضای شورای ملی در اصول وظایف

وظايفو په اصولو کې تنظيمېږي.

**يوسلو نهمه ماده :**
د تقنينيه دورې په وروستني يوکال کې د انتخاباتو د قانون د بدلېدو پيشنهاد د ملي شورى د کار په فهرست کې نشي نيول کېدلای.

## شپږم فصل
## لويه جرگه

**يوسلو لسمه ماده :**
لويه جرگه د افغانستان د خلکو د ارادې تر ټولو ستر مظهر دی.

لويه جرگه:

۱- د ملي شورى له غړيو؛

۲- د ولايتونو او ولسواليو د جرگو له رئيسانو جوړېږي؛

وزيران، د سترې محکمې رئيس او غړي او لوي څارنوال کولای شي د لويې جرگې په غونډو کې بې له دې چې د رايې ورکولو حق ولري گډون وکړي.

**يو سلو يوولسمه ماده:**
لويه جرگه په لاندينيو حالاتو کې دايرېږي:

داخلی تنظیم می گردد.

**مادۀ یکصد ونهم:**
پیشنهاد تعدیل قانون انتخابات، در یک سال اخیر دورۀ تقنینیه در فهرست کار شورای ملی داخل شده نمی تواند.

## فصل ششم
## لویه جرگه

**مادۀ یکصد و دهم:**
لویه جرگه عالی ترین مظهر اراده مردم افغانستان می باشد.

لویه جرگه متشکل است از:

۱- اعضای شورای ملی؛

۲- رؤسای شوراهای ولایات و ولسوالیها؛

وزرا، رئیس و اعضای ستره محکمه و لوی ثارنوال می توانند در جلسات لویه جرگه بدون حق رای اشتراک ورزند.

**مادۀ یکصد و یازدهم:**
لویه جرگه در حالات ذیل دایر میگردد:

۱- د هېـــواد دخپلـــواکۍ، ملـــي حاکمیت، ځمکنۍ بشپړتیا او سترو مصلحتونو پورې د مربوطو چارو په باب تصمیم نیول؛

۲- ددې اساســـــي قانـــــون د حکمونــو تعدیل؛

۳- ددې اساســـي قـــانون د (نهـــه شـپیتمې) مـادې لـه مخـې د جمهـور رئیس محاکمه کول؛

**یوسلو دولسمه ماده:**

لـویـه جرگــه پـــه لومـــړۍ غـونـډه کې، د غـــړیو لــــه منــځه یــو تـــن د رئیس، یو تـن د مـرستـــیال او دوه تــــنه د منشـــي او نایـــب منشـــي پـــه تـــوگـــه ټاکـــي.

**یو سلو دیار لسمه ماده :**

د لـویـــې جرگـــې نصـــاب د رایـــې اخیســتو پـه وخـت کـې د غـړیــو پـه اکثریت سره بشپړېږي.

د لـویې جرگـې تصـمیمونه، لـه هغـو مواردو پرتـه چې په دې اساسي قـانون کې صریحاً ذکـر شوي، د ټولو غړیو د رایو په اکثریت، نیول کېږي.

**یوسلو څوار لسمه ماده :**

د لویې جرگې بحثونـه علني دي، مگر

۱- اتـخـاذ تصمیم در مـورد مسـایل مربـوط بـــه استـقـــلال، حـاکمیـت مـلـــی، تمـامیـت ارضـی و مصـالح علیای کشور؛

۲- تـعـدیـــــل احـــــکام ایـــن قــانون اساسی؛

۳- محاکمهٔ رئیس جمهور مطابق به حکـم مندرج مـادهٔ شصـت و نهـم ایـن قانون اساسی؛

**مادهٔ یکصدو دوازدهم:**

لــویـــه جـرگــه در اولیــن جلـسه، از میان اعضا یک نفر را به حیث رئیس و یـک نفـر را بــه حیـث معـاون و دو نفر را به حیث منشی و نایب منشی انتخاب می کند.

**مادهٔ یکصد و سیزدهم:**

نـصـاب لـویـه جــرگــه هنگـام رای دهـی، بــا حضـور اکثریـت اعضـا تـکمیـل میـگردد.

تـــصامیـم لـویـــه جـرگـــه، جــز در مـواردی کــه در این قانون اســاســـی صریــحاً ذکـر گردیـــده، بـــا اکثریت آرای کل اعضا اتخاذ میگردد.

**مادهٔ یکصد و چهاردهم:**

مباحثات لویه جرگه علنی می باشد

دا چې د غړیو ځلورمه برخه یې د سریتوب غوښتنه وکړي او لویه جرګه دا غوښتنه ومني.

**یوسلو پنځلسمه ماده :**
د لویې جرګې د جریان په وخت کې ددې اساسي قانون (دیوسلویوومې) او (یوسلودویمې) مادې مندرج احکام د هغې د غړیو په باب تطبیقیږي.

## اووم فصل
## قضاء

**یوسلو شپاړسمه ماده:**
قضائیه قوه د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت خپلواک رکن دی.

قضائیه قوه له یوې ستره محکمې، د استیناف له محکمو او ابتدائیه محکمو څخه جوړه ده چې تشکیلات او واکونه یې د قانون له لیارې تنظیمیږي.

ستره محکمه د ستر قضایي اورګان په توګه د افغانستان د اسلامي جمهوریت د قضائیه قوې په سرکې ځای لري.

**یوسلو اوه لسمه ماده:**
ستره محکمه نهه تنه غړي لري

مگر اینکه یک ربع اعضا سری بودن آنرا در خواست نمایند و لویه جرگه این درخواست را بپذیرد.

**ماه یکصد و پانزدهم:**
در هنگام دایر بودن لویه جرگه، احکام مندرج مواد یکصد و یکم و یکصد و دوم این قانون اساسی، در مورد اعضای آن تطبیق میگردد.

## فصل هفتم
## قضاء

**مادۀ یکصد و شانزدهم:**
قوۀ قضائیه رکن مستقل دولت جمهوری اسلامی افغانستان می باشد.

قوۀ قضائیه مرکب است از یک ستره محکمه، محاکم استیناف و محاکم ابتدائیه که تشکیلات و صلاحیت آنها توسط قانون تنظیم میگردد.

ستره محکمه به حیث عالیترین ارگان قضایی در راس قوۀ قضائیه جمهوری اسلامی افغانستان قرار دارد.

**مادۀ یکصد و هفدهم:**
ستره محکمه مرکب است از نه

چــې د جمهــور رئيــس لــه خـــوا د ولسي جرگې په تاييد او ددې اساسي قانون د (پنځوسمې) مادې د وروستۍ فـقرې او د (يوسلو اتلسـمې) مـادې د حکمونو په رعايت، په پيل کې په دې ترتيب ټاکل کېږي:

عضو که از طرف رئيس جمهور با تائيد ولسی جرگه و با رعايت احکام مندرج فقرهٔ آخر مادهٔ پنجاهم و مادهٔ يکصد و هجدهم اين قانون اساسی در آغاز به ترتيب ذيل تعيين ميگردند:

درې تنه د څلورو کلونو لپاره، درې تنه د اوو کلونو لپاره او درې تنه د لسو کلونو لپاره.

سه نفر برای مدت چهار سال، سه نفر برای مدت هفت سال و سه نفر برای مدت ده سال.

وروستــۍ ټــاکنــې د لســو کلــونــو لپاره دي.

تعيينات بعدی برای مدت ده سال می باشد.

د غـړيــو ټــاکل د دوهـم ځـل لـپـاره جواز نه لري.

تعيين اعضا برای بار دوم جواز ندارد.

جمهــور رئيس د سترې محکمې يو غړی د سترې محکمې د رئيس په توگه ټاکي.

رئيس جمهور يکی از اعضا را به حيث رئيس ستره محکمه تعيين می کند.

د سترې محکمې غړي ددې اساسي قانون په (يوسلو اوه ويشتمې) مادې کې له راغلي حالت پرته، د خدمت د دورې تر پايه له خپلو وظيفو څخه نه عزلېږي.

اعضای ستره محکمه به استثنای حالت مندرج مادهٔ يکصد و بيست و هفتم اين قانون اساسی، تا ختم دورهٔ خدمت از وظايف شان عزل نمی شوند.

**يوسلو اتلسمه ماده :**

د سترې محکمې غړی بايد لاندېنې شرايط ولري:

**مادهٔ يکصد و هجدهم:**

عضو ستره محکمه واجد شرايط ذيل می باشد:

۱- د تاکلو په وخت کې د رئيس او غړيو عمر تر څلويښتو کلو لږ نه وي؛

۲- د افغانستان تبعه وي؛

۳- په حقوقي يا فقهي علومو کې لوړې زده‌کړې او د افغانستان په قضايي نظام کې تخصص او کافي تجربه ولري؛

۴- د ښه سيرت او نيک شهرت لرونکی وي؛

۵- د محکمې له خوا د بشري ضد جرمونو او جنايت په ارتکاب او يا له مدني حقوقو څخه په محرومۍ محکوم شوی نه وي؛

۶- د وظيفې د تصدۍ په وخت کې په هيڅ سياسي گوند کې غړيتوب ونه لري.

**يوسلو نولسمه ماده :**
د سترې محکمې غړي د وظيفې تر پيل مخکې، د جمهور رئيس په وړاندې دا لوړه کوي:

**بسم الله الرحمن الرحيم**

"د لوی خدای (جل جلاله) په نامه لوړه کوم چې د اسلام د سپيڅلي دين له احکامو، په دې اساسي قانون او

۱- سن رئيس و اعضا در حين تعيين از چهل سال کمتر نباشد ؛

۲- تبعۀ افغانستان باشد ؛

۳- در علوم حقوقی و يا فقهی تحصيلات عالی و در نظام قضايی افغانستان تخصص و تجربۀ کافی داشته باشد ؛

۴- دارای حسن سيرت و شهرت نيک باشد ؛

۵- از طرف محکمه به ارتکاب جرايم ضد بشری، جنايت و يا حرمان از حقوق مدنی محکوم نشده باشد ؛

۶- در حال تصدی وظيفه در هيچ حزب سياسی عضويت نداشته باشد.

**مادۀ يکصد و نزدهم:**
اعضای ستره محکمه قبل از اشغال وظيفه، حلف آتی را در حضور رئيس جمهور به جا می آورند:

**بسم الله الرحمن الرحيم**

"به نام خداوند بزرگ (جل جلاله) سوگند ياد می کنم که حق و عدالت را بر طبق احکام دين مقدس اسلام،

نورو قوانينو کې له راغلو نصوصو سره سم حق او عدالت تأمين او د قضاء وظيفه په بشپړ امانت، صداقت او بې طرفۍ اجراء کړم."

**يوسلو شلمه ماده :**
د قضائيه قوی په صلاحيت کې په ټولو هغو دعوو غور شامل دی، چې د دولت په شمول د حقيقي يا حکمي اشخاصو له خوا د مدعي يا مدعي عليه په حيث د قانون له حکمونو سره سم د محکمې په وړاندې اقامه شي.

**يوسلو يو ويشتمه ماده :**
له اساسي قانون سره د قوانينو، تقنيني فرمانونو، بين الدول معاهدو او بين المللي ميثاقونو د مطابقت څېړل، د حکومت يا محاکمو په غوښتنه او د هغو تفسير د قانون له حکمونو سره سم د سترې محکمې صلاحيت دی.

**يوسلو دوه ويشتمه ماده :**
هېڅ قانون نشي کولای په هېڅ حال کې، کومه قضيه يا ساحه په څه ډول چې په دې فصل کې تحديد شوې د قضائيه قوې له صلاحيت څخه و باسي او بل مقام ته يې وسپاري.

دا حکم د هغو خاصو محکمو چې

نصوص اين قانون اساسی و ساير قوانين افغانستان تأمين نموده، وظيفه قضاء را با کمال امانت، صداقت و بی طرفی اجرا نمايم."

**مادهٔ يکصد و بيستم:**
صلاحيت قوه قضائيه شامل رسيدگی به تمام دعاويی است که از طرف اشخاص حقيقی يا حکمی، به شمول دولت، به حيث مدعی يا مدعی عليه در پيشگاه محکمه مطابق به احکام قانون اقامه شود.

**مادهٔ يکصد و بيست و يکم:**
بررسی مطابقت قوانين، فرامين تقنينی، معاهدات بين الدول و ميثاق های بين المللی با قانون اساسی و تفسير آنها بر اساس تقاضای حکومت و يا محاکم، مطابق به احکام قانون از صلاحيت ستره محکمه می باشد.

**مادهٔ يکصد و بيست و دوم:**
هيچ قانون نمی تواند در هيچ حالت، قضيه يا ساحه يی را از دايرهٔ صلاحيت قوهٔ قضائيه به نحوی که در اين فصل تحديد شده، خارج بسازد و به مقام ديگر تفويض کند.

اين حکم مانع تشکيل محاکم

ددې اساسي قانون په (نهه شپيتمې، اته اويايمې او يوسلواوه ويشتمې) مادو کې راغلې او په مربوطو قضيو کې د نظامي محکمو د تشکيل مانع نه ګرځي.

د دې ډول محکمو تشکيل او صلاحيت د قانون له لياري تنظيمېږي.

**يوسلو در ويشتمه ماده :**
ددې اساسي قانون د حکمونو په رعايت، د محکمو په تشکيل، صلاحيت او اجراآتو پورې مربوط قواعد او په قاضيانو پورې مربوطې چارې د قانون له لياري تنظيمېږي.

**يوسلو څلير ويشتمه ماده:**
د قضائيه قوې د مامورينو او نورو اداري کارکوونکيو په برخه کې، د دولت د مامورينو او نورو اداري کار کوونکيو د مربوطو قوانينو حکمونه نافذ دي خو تقرر، انفکاک، ترفيع، تقاعد، مجازات او مکافات يې دسترې محکمې له خوا له قانون سره سم تر سره کېږي.

**يوسلو پنځه ويشتمه ماده:**
د قضائيه قوې بودجه د حکومت په مشوره دسترې محکمې له خوا ترتيبېږي او د دولت د بودجې د يوې

خاص مندرج مواد شصت و نهم، هفتاد و هشتم و يکصد و بيست و هفتم اين قانون اساسى و محاکم عسکرى در قضاياى مربوط به آن نميگردد.

تشکيل و صلاحيت اين نوع محاکم توسط قانون تنظيم ميگردد.

**مادۀ يکصد و بيست و سوم:**
با رعايت احکام اين قانون اساسى، قواعد مربوط به تشکيل، صلاحيت و اجراآت محاكم و امور مربوط به قضات توسط قانون تنظيم ميگردد.

**مادۀ يکصد و بيست و چهارم:**
در مورد مامورين و ساير كاركنان ادارى قوۀ قضائيه، احكام قوانين مربوط به مامورين و ساير كاركنان ادارى دولت نافذ مى باشد ولى تقرر، انفكاک، ترفيع، تقاعد، مجازات و مكافات شان توسط ستره محكمه مطابق به احكام قانون صورت ميگيرد.

**مادۀ يکصد و بيست و پنجم:**
بودجۀ قوۀ قضائيه به مشورۀ حكومت از طرف ستره محكمه ترتيب گرديده، به حيث جزء بودجۀ

برخې په توګه د حکومت له خوا ملي شورى ته وړاندې کېږي.

د قضائيه قوې د بودجې تطبيق د سترې محکمې صلاحيت دى.

**يوسلو شپږ ويشتمه ماده :**

د سترې محکمې غړي، د خدمت د دورې تر پاى ته رسېدو وروسته، د پاتې ژوند په موده کې د خدمت د دورې له مالي حقوقو څخه برخمن کېږي، په دې شرط چې په دولتي او سياسي چارو بوخت نشي.

**يو سلو اوه ويشتمه ماده:**

که چېرې د ولسي جرګې تر درييمې برخې زيات غړي، د سترې محکمې د رئيس يا غړيو محاکمه، د وظيفوي جرم يا د جنايت د ارتکاب د اتهام پر اساس وغواړي او ولسي جرګه دا غوښتنه د ټولو غړيو له دريو برخو څخه د دوو برخو په اکثريت تصويب کړي، متهم له وظيفې څخه عزل او موضوع خاصې محکمې ته سپارل کيږي.

د محکمې تشکيل او د محاکمې طرز العمل د قانون په وسيله تنظيمېږي.

دولت، توسط حکومت به شوراى ملى تقديم مى شود.

تطبيق بودجهٔ قوهٔ قضائيه از صلاحيت ستره محکمه مى باشد.

**مادهٔ يکصد و بيست و ششم:**

اعضاى ستره محکمه بعد از ختم دورهٔ خدمت براى بقيه مدت حيات از حقوق مالى دورهٔ خدمت مستفيد مى شوند مشروط به اينکه به مشاغل دولتى و سياسى اشتغال نورزند.

**مادهٔ يکصد و بيست و هفتم:**

هرگاه بيش از يک ثلث اعضاى ولسى جرگه، محاکمه رئيس يا عضو ستره محکمه را بر اساس اتهام به جرم ناشى از اجراى وظيفه يا ارتکاب جنايت تقاضا نمايند و ولسى جرگه اين تقاضا را با اکثريت دو ثلث کل اعضا تصويب کند، متهم از وظيفه عزل و موضوع به محکمهٔ خاص محول ميگردد.

تشکيل محکمه و طرز العمل محاکمه، توسط قانون تنظيم مى گردد.

**يو سلو اته ويشتمه ماده :**
د افغانستان په محکمو کې محاکمه په علني ډول دايرېږي او هر څوک حق لري د قانون له حکمونو سره سم په هغې کې ګډون وکړي.

محکمه کولای شي، په داسي حالاتو کې چې په قانون کې څرګند شوی يا د محاکمي سري توب ضروري وګڼل شي، سري غونډې دايرې کړي خو د حکم اعلان بايد علني وي.

**يو سلو نهه ويشتمه ماده:**
محکمه مکلفه ده د خپل صادر کړي حکم اسباب په فيصله کې ذکر کړي.

د محکمو د ټولو قطعي فيصلو عملي کول واجب دي خو د شخص د مرګ د حکم په حالت کې د جمهور رئيس منظوري شرط ده.

**يوسلو دېرشمه ماده:**
محکمې ترغور لاندې قضاياوو کې ددې اساسي قانون او نورو قوانينو حکمونه تطبيقوي.

که د غور لاندې قضاياوو له جملې څخه د کومې قضيې لپاره په اساسي قانون او نورو قوانينو کې حکم موجود نه وي، محکمه د حنفي فقهې د

**مادۀ يکصد و بيست و هشتم:**
در محاکم افغانستان، محاکمه به صورت علنی داير می گردد و هر شخص حق دارد با رعايت احکام قانون در آن حضور يابد.

محکمه می تواند در حالاتی که در قانون تصريح گرديده، يا سری بودن محاکمه ضروری تشخيص گردد، جلسات سری داير کند ولی اعلام حکم بايد به هر حا ل علنی باشد.

**مادۀ يکصد و بيست و نهم:**
محکمه مکلف است اسباب حکمی را که صادر می نمايد، در فيصله ذکر کند.

تمام فيصله های قطعی محاکم واجب التعميل است مگر در حالت حکم به مرگ شخص که مشروط به منظوری رئيس جمهور می باشد.

**مادۀ يکصد و سی ام:**
محاکم در قضايای مورد رسيد گی، احکام اين قانون اساسی و ساير قوانين را تطبيق می کنند.

هرگاه برای قضيه يی از قضايای مورد رسيدگی، در قانون اساسی و ساير قوانين حکمی موجود نباشد محاکم به پيروی از

احــکامو لـه مخي او پـه هغـو حـدودو کـې دننــه چـــې دې اساســي قانـــون ټاکلي، قضـيه پــه داسـي ډول حـل او فصل کوي چې عـدالـت پـه ډېـره ښـه توګه تأمین کړي.

یوسلو یو دېرشمه ماده :
محکمې د اهل تشیع لپاره په شخصیه احوالـو پـورې مربوطـو قضـایاووکې د تشـیع د مـذهب حکمونـه د قـانون لـه احکامو سره سم تطبیقوي.

پــه نـــورو دعـوو کـې هـم کـه پـه دې اساســي قـانون یـا نـــورو قـوانینـو کـې حکـم مـوجـود نـه وي، محکمې قضیه د دې مذهب له حکمونو سره سم حل او فصل کوي.

یوسلو دوه دېرشمه ماده :
قـاضیـــان د ســـترې محکمـــې پـــه پیشـــنهاد او د جمهـــور رئـــیس پـــه مـنظورۍ ټاکل کېږي.

د قاضـیانو مقـرري، تبـدیلي، ترفیـع مواخذه او د تقاعد پیشنهاد د قانون له حکمونـو سـره سـم د سـترې محکمـې صلاحیت دی.

سـتره محکمــه د اجرایــي او قضــایي چارو د ښه تنظیم او د لازمو اصلاحاتو د تـــأمین لپـــاره، د قضـــائیه قـــوې،

احکام فقه حنفی و در داخل حدودی کـه ایـن قـانون اساسی وضـع نمـوده، قضـیه را بـه نحـوی حـل و فصـل مـی نماینـد کـه عـدالت را بـه بهتـرین وجـه تأمین نماید.

مادۀ یکصدو سی و یکم:
محـاکـم برای اهل تشیع، در قضایای مــربــوط بـه احـوا ل شخصـیه، احکـام مذهب تشیع را مطابق به احکام قانون تطبیق می نمایند.

در ســایـــر دعـاوی نیـز اگـر در ایـن قـانون اساسی و قـوانین دیگر حکمـی موجــود نباشــد، محــاکم قضــیه را مطـابق بـه احکـام ایـن مـذهب حـل و فصل می نمایند.

مادۀ یکصد و سی و دوم:
قـضـــات بـــه پیشـنهـــاد ســتـــره مـحـکـمــه و منظـوری رئـیس جمهـور تعیین می گردند.

تقـــرر، تبـــدل، تـــرفیع، مؤاخـذه و پیشـنهاد تقاعـد قضـات مطـابق بـه احکـــام قـــانون از صـــلاحیت ســـتره محکمه می باشد.

ستره محکمـه بـه منظـور تنظیم بهتـر امـــور اجرایـــی و قضایـــی و تـــأمین اصلاحات لازم، آمریت عمومی اداری

عمومي اداري آمريت تأسيسوي.

**يوسلو دري د ېرشمه ماده :**
كــه قـاضــي د جنـايــت پــه ارتــكاب متهـم شـي، ستره محكمه د قـانون لـه حكمونو سره سم د قاضي پر حالت غور كوي، كه ستره محكمه دده د دفـاع تر اوريـدو وروسـتـه اتهـام وارد وبـولي، جمهـور رئـيس تـه يې د عـزل پيشـنهاد كـوي د جمهــور رئــيس لــه منظــوري وروســتـه مــتهم قاضــي لــه وظيفــې ځــــخه عــزل او د قــانون لــه حكمونــو سره سم جزا وركول كيږي.

**يوسلو څلور د ېرشمه ماده:**
دجـرمــونـــو كـشـــف د پـوليـــس پــه وســيله او دجرمونـــو تحقيـــق او پـــه محكمـه كـې پـر مـتهم بانـدې د دعـوا اقامـه دڅارنوالۍ لـه خوا، د قـانون لـه احكامو سره سم كېږي.

څارنوالي د اجرائيه قـوې برخـه ده او پـه خپلو اجراآتو كې استقلال لري.

د څـارنوالۍ تشـكيل، صـلاحيت او د اجراآتــو څـرنګـوالــي د قانــون لــه لـيـاري تـنـظيـمـېږي.

د وسله والو ځواكونو، پوليسو او دملي امنيت كاركوونكيو د وظيفوي جرمونو كشـف او تحقيـق د خـاص قـانون لـه

قوۀ قضائيه را تأسيس مى نمايد.

**مادۀ يكصد و سى و سوم:**
هرگاه قاضى به ارتكاب جنايت مـتهم شود، ستره محكمه مطابق به احكام قـانون بـه حالـت قاضـى رسـيدگى نمـوده، پس از اسـتماع دفـاع او، در صورتيكه ستره محكمه اتهام را وارد بدانـد پيشـنهاد عـزلش را بـه رئـيس جمهور تقديم و با منظورى آن از طرف رئيس جمهور، قاضى مـتهم از وظيفـه معـزول و مطـابق بـه احكـام قـانون مجازات مى شود.

**مادۀ يكصد و سى چهارم:**
كـشــف جـرايم، توسـط پـوليس و تـحقيــق جـرايــم و اقـامــۀ دعـوا عـليــه متهــم در محـكمــه، از طــرف څـارنوالى مطـابق بـه احكـام قانون صورت ميگيرد.

څــارنوالى جــزء قــوۀ اجرائيــه و در اجـراآت خـود مسـتقل مـى باشد.

تـشـكيـــل، صــلاحيت و طـــرز فـعـالــيت څـــارنـوالـــى تـوســط قـانون تنظيم ميگردد.

كشــف و تحقيــق جـرايم وظيفــوى منســوبين قــواى مســلح، پــوليس و مـوظفين امنيـت ملـى، توسط قـانون

ليارې تنظيمېږي.

**يوسلو پنځه دېرشمه ماده:**
که د دعوي لوری په هغه ژبه چې محاکمه پرې کېږي و نه پوهېږي، د قضيې پر موادو او اسنادو د اطلاع او په محکمه کې په خپله مورنۍ ژبه د خبروکولو حق دترجمان په وسيله ورته تأمينېږي.

## اتم فصل
## اداره

**يوسلو شپږ دېرشمه ماده:**
د افغانستان د اسلامي جمهوريت اداره د مرکزي اداري او محلي ادارو د واحدونو پر اساس له قانون سره سم تنظيمېږي.

مرکزي اداره پرځينو اداري واحدونو ويشل کېږي چې د هرې يوې په سرکې يو وزير وي.

دمحلي اداري واحد ولايت دی. د ولايتونو او مربوطه ادارو شمير، ساحه، برخي او تشکيلات د نفوسو دشمير، ټولنيزې او اقتصادي وضعې او جغرافيايي موقعيت پر اساس دقانون له ليارې تنظيمېږي.

خاص تنظيم می گردد.

**مادهٔ يکصد و سی و پنجم:**
اگر طرف دعوا زبانی را که محاکمه توسط آن صورت می گيرد، نداند، حق اطلاع به مواد و اسناد قضيه و صحبت در محکمه به زبان مادری، توسط ترجمان برايش تأمين ميگردد.

## فصل هشتم
## اداره

**مادهٔ يکصدوسی وششم :**
ادارهٔ جمهوری اسلامی افغانستان براساس واحدهای ادارهٔ مرکزی و ادارات محلی، طبق قانون، تنظيم ميگردد.

ادارهٔ مرکزی به يک عده واحدهای اداری منقسم ميگردد که در رأس هر کدام يک نفر وزير قرار دارد.

واحد ادارهٔ محلی، ولايت است. تعداد، ساحه، اجزا و تشکيلات ولايات و ادارات مربوط، بر اساس تعداد نفوس، وضع اجتماعی و اقتصادی و موقعيت جغرافيايی توسط قانون تنظيم ميگردد.

**يوسلو اوه دېرشمه ماده:**
حکومت د مرکزيت د اصل په ساتلو سره د اقتصادي، ټولنيزو او فرهنگي چارو د گړندي کولو او ښه والي او د ملي ژوند په پرمختنگ کې د خلکو د لا زياتې ونډې اخيستو په منظور، لازم صلاحيتونه د قانون له حکمونو سره سم محلي ادارې ته سپاري.

**يوسلو اته دېرشمه ماده:**
په هر ولايت کې يوه ولايتي جرگه جوړيږي.

د ولايتي جرگې غړي له قانون سره سم د نفوسو په تناسب، د آزادو، عمومي پټو او مستقيمو ټاکنو له مخې د ولايت د اوسېدونکو له خوا د څلورو کلونو لپاره ټاکل کيږي.

ولايتي جرگه له خپلو غړيو څخه يو تن د رئيس په توگه ټاکي.

**يوسلو نهه دېرشمه ماده:**
ولايتي جرگه د دولت د پرمختيايي هدفونو په تأمين او د ولايت د چارو په ښه کولو کې لکه څنگه چې په قوانينوکې څرگنده شوې، برخه اخلي اوپه ولايت پورې د مربوطو چارو په باب مشوره ورکوي.

ولايتي جرگه خپلې وظيفې د محلي

**مادهٔ يکصد و سی و هفتم:**
حکومت با حفظ اصل مرکزيت به منظور تسريع و بهبود امور اقتصادی، اجتماعی و فرهنگی و سهم گيری هر چه بيشتر مردم در انکشاف حيات ملی، صلاحيتهای لازم را مطابق به احکام قانون، به ادارهٔ محلی تفويض می نمايد.

**مادهٔ يکصد و سی وهشتم:**
در هر ولايت يک شورای ولايتی تشکيل می شود.

اعضای شورای ولايتی، طبق قانون، به تناسب نفوس، از طريق انتخابات آزاد، عمومی، سری ومستقيم از طرف ساکنين ولايت برای مدت چهارسال انتخاب ميگردند.

شورای ولايتی يک نفر از اعضای خود را به حيث رئيس انتخاب می نمايد.

**مادهٔ يکصد و سی ونهم:**
شورای ولايتی در تأمين اهداف انکشافی دولت و بهبود امور ولايت به نحوی که در قوانين تصريح می گردد سهم گرفته و در مسايل مربوط به ولايت مشوره می دهد.

شورای ولايتی وظايف خود را با

اداري په مرسته سرته رسوي.

**یوسلو څلو ېښتمه ماده:**
د محلي اداري د چارو د سمون او په هغې کې د خلکو د فعالې ونډې اخیستو د تأمین په مقصد، په ولسوالیو او کلیو کې د قانون له حکمونو سره سم جرګې جوړېږي.

ددې جرګو غړي د آزادو، عمومي، پټو او مستقیمو ټاکنو له مخې دسیمې د اوسېدونکو له خوا د دریو کلونو لپاره ټاکل کېږي.

په محلي جرګو کې د کوچیانو ګډون د قانون له حکمونو سره سم تنظیمېږي.

**یوسلو یو څلویښتمه ماده:**
د ښاري چارو د اداري لپاره ښاروالي تشکیلېږي.

ښاروال او د ښاري مجلسونو غړي د آزادو، عمومي، پټو او مستقیمو انتخاباتو له لارې انتخابېږي.

په ښاروالیو پورې مربوطې چارې د قانون له لیارې تنظیمېږي.

**یوسلو دوه څلویښتمه ماده:**
دولت ددې اساسي قانون د

همکاری ادارهٔ محلی اجرا می نماید.

**مادهٔ یکصد و چهلم:**
برای تنظیم امور و تأمین اشتراک فعال مردم در ادارهٔ محلی، در ولسوالی ها و قریه ها، مطابق به احکام قانون، شوراها تشکیل می گردند.

اعضای این شوراها از طریق انتخابات آزاد، عمومی، سری و مستقیم از طرف ساکنین محل برای مدت سه سال انتخاب می شوند.

سهم گیری کوچیان در شوراهای محلی مطابق به احکام قانون تنظیم می گردد.

**مادهٔ یکصد و چهل و یکم:**
برای ادارهٔ امور شهری، شاروالی تشکیل می شود.

شاروال و اعضای مجالس شاروالی، از طریق انتخابات آزاد، عمومی، سری و مستقیم انتخاب می شوند.

امور مربوط به شاروالی ها توسط قانون تنظیم میگردند.

**مادهٔ یکصد و چهل و دوم:**
دولت به مقصد تعمیل احکام

حکمونــو د تعـــمیل او د منـــدرجو ارزښتونو د تـــأمیـــن لپـــاره لازمـي اداري جوړوي.

و تــأمیــن ارزشهــای منــدرج ایــن قــانـــون اســـاسی، ادارات لازم را تشکیل می نماید.

## نهم فصل
## اضطراري حالت

## فصل نهم
## حالت اضطرار

**یوسلو دري څلویښتمه ماده:**
کـه د جګـړې، د جګـړې دخطـر، وخـیم اغتشـاش او طبیعـي آفـاتو او یـا ورتـه حالت له امله د خپلواکۍ او ملي ژوند ساتنه پـه هغـه طریقـه چې پـه اساسي قانون کې ټاکل شوې، ناشوني وګرځي د جمهور رئیس له خوا د ملي شورى په تائید د هېواد په ټولو او یا ځینې برخو کې اضطراري حالت اعلانېږي.

کـه اضـطراري حالـت تـر دوو میاشـتو زیـات دوام ومـومي، د اوږدولـو لپـاره یې د ملي شورى موافقه شرط ده.

**مادۀ یکصد و چهل و سوم:**
هرگـاه بـه علـت جنـگ، خطـر جنـگ، اغتشـاش وخـیم، آفـات طبیعـی و یـا حالت مماثل، حفظ استقلال و حیـات ملی از مجرایی که در قانـون اساسی تعیین شده، ناممکـن گـردد، حـالـت اضـطرار از طـرف رئـیس جمهـور بـا تائید شورای ملی در تمـام یا بعضی از سـاحـات کشـور اعلان می شود.

هرگـاه حالـت اضـطرار بیش از دو مـاه دوام نماید، برای تمدید آن، موافقت شورای ملی شرط است.

**یوسلو څلورڅلویښتمه ماده:**
په اضطراري حالت کې جمهور رئیس کـولای شـي د ملـي شـورى او د سـترې محکمې له رئیسانو سره په مشوره، د ملي شورى ځینې صلاحیتونه حکومت ته انتقال کړي.

**مادۀ یکصد و چهل و چهارم:**
در حــالــت اضــطرار رئـیس جمـهــور می تواند بـه مـشـورۀ رؤسـای شورای ملــی و ســتره مـحـکمـــه، بعضـــی از صـلاحیت هـای شـــورای ملـی را بـه حکومت انتـقال دهد.

**یوسلو پنځه څلویښتمه ماده:**
په اضطراري حالت کې جمهور رئیس کولای شي چې د ملي شورى او دسترې

**مادۀ یکصد و چهل و پنجم:**
در حـــالت اضطرار، رئیس جمهور می تـــواند بعد از تائید روسای شـــورای

محکمې د رئیسانو تر تائید وروسته د اساسي قانون لاندینی حکمونه وځنډوي او یا قیود پرې ولګوي:

۱- د اوه ویشتمې مادې دویمه فقره؛

۲- شپږ دېرشمه ماده؛

۳- داوه دېرشمي مادې دویمه فقره؛

۴- داته دېرشمي مادې دویمه فقره؛

**یوسلو شپږ ځلویښتمه ماده:**
داضطرار په حالت کې اساسي قانون نه تعدیلېږي.

**یوسلو اوه ځلویښتمه ماده:**
که چېرې دجمهوري ریاست دوره او یا د ملي شوری تقنیني دوره د اضطرار په حالت کې پای ته ورسېږي، د نویو انتخاباتو تر سره کیدل ځنډېږي او د جمهور رئیس او ملي شوری د غړیو د خدمت موده تر ځلورو میاشتو پورې تمدیدېږی.

که اضطراري حالت تر ځلورو میاشتو زیات اوږد شي، لویه جرګه د جمهور رئیس له خوا راغو ښتله کیږي.

د اضطراري حالت تر پای ته رسېدو وروسته، د دوومیاشتو دننه انتخابات کیږی.

ملی و ستره محکمه، تنفیذ احکام ذیل را معطل بسازد و یا بر آنها قیودی وضع نماید:

۱- فقرۀ دوم مادۀ بیست وهفتم؛

۲- مادۀ سی و ششم؛

۳- فقره دوم مادۀ سی و هفتم؛

۴- فقره دوم مادۀ سی و هشتم؛

**مادۀ یکصدو چهل و ششم:**
در حالت اضطرار، قانون اساسی تعدیل نمی شود.

**مادۀ یکصد و چهل و هفتم:**
هرگاه دورۀ ریاست جمهوری و یا دوره تقنینیه شورای ملی در حالت اضطرار ختم شود، اجرای انتخابات جدید ملتوی گذاشته شده، مدت خدمت رئیس جمهور و اعضای شورای ملی تا چهار ماه تمدید می شود.

هرگاه حالت اضطرار بیش از چهار ماه دوام نماید لویه جرگه از طرف رئیس جمهور دعوت می شود.

بعد از ختم حالت اضطرار، در خلال مدت دو ماه، انتخابات برگزار میگردد.

**يوسلو اته څلوېښتمه ماده:**
د اضطراري حالت په پای ته رسېدو سره هغه اقدامات چې ددې اساسي قانون د (يوسلو څلور څلوېښتمې او يوسلو پنځه څلوېښتمې) مادې له مخې شوي، بې له ځنډه له اعتباره لوېږي.

**ماده‌ٔ يکصد و چهل و هشتم:**
در ختم حالت اضطرار، اقداماتی که بر اساس مواد يکصد و چهل و چهارم و يکصد و چهل و پنجم اين قانون اساسی به عمل آمده، بلا فاصله از اعتبار ساقط ميگردند.

## لسم فصل
## تعديل

## فصل دهم
## تعديل

**يوسلو نهه څلوېښتمه ماده:**
د اسلام دسپېڅلي دين له حکمونو څخه د پيروۍ اصل او اسلامي جمهوري نظام نه تعديلېږي.

د اتباعو د اساسي حقوقو تعديل يوازي د هغوی د حقوقو د ښيګڼې په منظور جواز لري.

ددې اساسي قانون د نورو موادو تعديل د زمان د غوښتنو او تجربو له مخې، ددې اساسي قانون د اوه شپيتمې او يوسلو شپږ څلوېښتمې مادې د احکامو په رعايت سره، د جمهور رئيس يا د ملي شورى د اکثريت په پيشنهاد کېږي.

**ماده‌ٔ يکصد و چهل و نهم:**
اصل پيروی از احکام دين مقدس اسلام و نظام جمهوری اسلامی تعديل نمی شوند.

تعديل حقوق اساسی اتباع صرف به منظور بهبود حقوق آنان مجاز می باشد.

تعديل ديگر محتويات اين قانون اساسی، نظر به تجارب و مقتضيات عصر، با رعايت احکام مندرج مواد شصت و هفتم و يکصد و چهل و ششم اين قانون اساسی، با پيشنهاد رئيس جمهور يا اکثريت اعضای شورای ملی صورت می گيرد.

**يوسلو پنځوسمه ماده:**
د تعديل د پيشنهاد لپاره د جمهور رئيس په فرمان د حکومت،

**ماده‌ٔ يکصد و پنجاهم:**
به منظور اجرای پيشنهاد تعديل، هيئتی از بين اعضای حکومت،

ملي شورى او ستري محکمې د غړيو له منځه، يو هيئت جوړيږي او د تعديل طرح تياروي.

د تعديل د تصويب لپاره د جمهور رئيس په فرمان او د لويې جرګې د فصل له حکمونو سره سم لويه جرګه دايريږي.

که لويه جرګه د ټولو غړيو له دريو برخو څخه د دوو برخو په اکثريت د تعديل طرح تصويب کړي، د جمهور رئيس تر توشيح وروسته نافذيږي.

## يوولسم فصل
## متفرقه حکمونه

**يوسلو يو پنځوسمه ماده:**
جمهور رئيس، د جمهور رئيس مرستيالان.، وزيران او د ستري محکمې رئيس او غړي، لوى څارنوال، د مرکزي بانک او ملي امنيت رئيسان، واليان او ښاروالان د خپلې وظيفې په وخت کې نشي کولای له دولت سره هيڅ ډول انتفاعي معامله تر سره کړي.

**يوسلو دوه پنځوسمه ماده:**
جمهور رئيس، د جمهور رئيس مرستيالان، وزيران، د ملي شورى او ستري محکمی رئيسان او غړي، لوى

شورای ملی‌و ستره محکمه به فرمان رئيس جمهور تشکيل گرديده، طرح تعديل را تهيه می کند.

برای تصويب تعديل، لويه جرگه بر اساس فرمان رئيس جمهور و مطابق به احکام فصل لويه جرگه داير ميگردد.

هرگاه لويه جرگه با اکثريت دو ثلث کل اعضا طرح تعديل را تصويب کند، بعد از توشيح رئيس جمهور نافذ می گردد.

## فصل يازدهم
## احکام متفرقه

**مادهٔ يکصد و پنجاه و يکم:**
رئيس جمهور، معاونين رئيس جمهور، وزرا، رئيس و اعضای ستره محکمه، لوى ثارنوال، روسای بانک مرکزی و امنيت ملی، واليان و شاروالها در مدت تصدی وظيفه نمی توانند هيچ معامله انتفاعی را با دولت انجام دهند.

**مادهٔ يکصد و پنجاه و دوم:**
رئيس جمهور، معاونين رئيس جمهور، وزرا، رؤسا و اعضای شورای ملی و ستره محکمه، لوى

خارنــوال او قاضـيان نشـي كـولاى د وظيفـې د تصـدى په مـوده كـې نـور مشاغل ولري.

**يوسلو دري پنځوسمه ماده:**

قاضـيان، څـارنوالان، د وسـله والـو ځواكونـو او پوليسـو منصـبداران او د ملي امنيت كاركوونكی نشی كولی د وظيفې دتصدی په موده كې په سياسي گوندونو كې غړيتوب ولري.

**يوسلو څلور پنځوسمه ماده:**

د جــمهور رئـيس، د جمهـور رئـيس د مـرستيـــالانو، وزيرانـــو اوســتري محكمــې د غـــړو او لـــوى څـــارنوال شتمني، د خدمت تر دورې وړاندې او وروسته، د هـغه اورگان پـه وسيــلـه چــې قـانــون يـې ټـاكې ثــبت، څېـړل كېږي او خپرېږي.

**يوسلو پنځه پنځوسمه ماده:**

د جمهور رئيس مرستيالانو، وزيرانـو، د ملــي شــورى رئيســانو او غړيـو، د سترې محكمې غړيو، قاضيانو او لوى څارنوا ل تـه د قـانون لـه حكمونـو سـره سم، مناسب معاش ټاكل كېږي.

**يوسلو شپږ پنځوسمه ماده:**

د هـــر ډول انـتخـابـاتــو د څــارنې او اداري او په هېواد كې د خلكو عمومي

خارنـــوال و قضـات نـمی تواننـد در مـدت تصـدی وظيـفـه بــه مشـاغــل ديگری اشتغال ورزند.

**مادۀ يكصد و پنجاه و سوم:**

قضـات، څـارنوالان، صـاحب منصبان قــوای مسـلح و پــوليس و منســوبين امنيت ملی، در مدت تصدی وظيــفه نمـــی تواننــــد در احـــزاب سياســـی عضويت داشته باشند.

**مادۀ يكصد و پنجاه و چهارم:**

دارايـــی رئـــيس جمهـــور، معـــاونين رئـــيس جـمـهـــور، وزرا، اعـضـــای ســتـــره مـحـكـمـــــه و لـوی څارنـــوال قــبـــــل و بـــعد از دورۀ خـــــدمت، تــوســـط ارگانـــی كــــه در قانـــون تـعـيـين ميگـردد، ثبت، رسيدگی و نشر می شود.

**مادۀ يكصد و پنجاه و پنجم:**

بـــرای معاونـــين رئـــيس جمهـــور، وزرا، رؤسـا و اعضای شـورای ملی و ستره محكمه، قضات و لـوی څارنـوال مـطابق به احكام قانون معاش مناسب تـعيين ميگردد.

**مادۀ يكصد و پنجاه و ششم:**

كـــميسيون مسـتقل انتخابـات بـرای اداره و نــظارت بر هر نوع انتـخـابات

رایو ته د مراجعې لپاره د انتخاباتو مستقل کمېسیون د قانون له حکمونو سره سم جوړېږي.

و مراجعه به آرای عمومی مردم در کشور مطابق به احکام قانون تشکیل میگردد.

**یوسلو اوه پنځوسمه ماده:**
د اساسي قانون پر تطبیق د څارنې خپلواک کمېسیون د قانون له حکم سره سم تشکیلېږي.

**مادهٔ یکصد و پنجاه و هفتم:**
کمیسیون مستقل نظارت بر تطبیق قانون اساسی مطابق به احکام قانون تشکیل می گردد.

ددې کمېسیون غړي د جمهور رئیس له خوا د ولسي جرگې په تائید تعینېږي.

اعضای این کمیسیون از طرف رئیس جمهور به تائید ولسی جرگه تعیین میگردند.

## دولسم فصل
## انتقالي حکمونه

## فصل دوازدهم
## احکام انتقالی

**یوسلو اته پنځوسمه ماده:**
د ملت د بابا لقب او هغه امتیازونه چې د ۱۳۸۱ هجري شمسي کال د اضطراري لویې جرگې له خوا د افغانستان پخواني پاچا اعلیحضرت محمد ظاهر شاه ته ورکړل شوي دي، ددې اساسي قانون د حکمونو له رعایت سره سم د ژوند تر پایه د دوی لپاره محفوظ دي.

**مادهٔ یکصد و پنجاه و هشتم:**
لقب بابای ملت و امتیازاتی که توسط لویه جرگه اضطراری سال یکهزار و سه صد و هشتاد و یک هجری شمسی به اعلیحضرت محمد ظاهر شاه، پادشاه سابق افغانستان، اعطا شده است با رعایت احکام این قانون اساسی مادام الحیات برای ایشان محفوظ می باشد.

**یوسلو نهه پنځوسمه ماده:**
د دغه اساسي قانون له نافذیدو څخه د ملي شورى د افتتاح تر نېټې پورې موده د انتقال دوره گڼل کېږي.

**مادهٔ یکصد و پنجاه و نهم:**
مدت بعد از نفاذ این قانون اساسی تا تاریخ افتتاح شورای ملی، دورهٔ انتقال شمرده می شود.

د افغانستان انتقالي اسلامي دولت د انتقال په دوره کې لاندينۍ وظيفې سرته رسوي:

۱- دشپږو مياشتو دننه جمهوري رياست، ملي شورى او محلي جرگو د انتخاباتو په اړه د تقنيني فرمانونو صادرول؛

۲- له يوه کال څخه په کمه موده کې د محکمو د صلاحيتونو او تشکيلاتو او د اساسي تشکيلاتو پر قانون باندې دکار د پيل په اړه د فرمانونو صادرول؛

۳- د انتخاباتو د خپلواک کمېسيون جوړول؛

۴- د اجرايي او قضايي چارو د غوره تنظيم په منظور د لازمو اصلاحاتو سرته رسول؛

۵- د دې اساسي قانون د حکمونو د تطبيق په برخه کې د زمينې د برابرولو لپاره لازم تدبيرونه نيول؛

**يوسلو شپيتمه ماده:**

لومړنى منتخب جمهور رئيس د انتخاباتو د نتايجو تر اعلان د پرش ورځې وروسته د دغه اساسي قانون له حکمونو سره سم په کار پيل کوي.

دولت انتقالی اسلامی افغانستان، در دورۀ انتقال، وظایف ذیل را انجام می دهد:

۱- اصدار فرامین تقنینی مربوط به انتخابات ریاست جمهوری، شورای ملی و شوراهای محلی در مدت شش ماه؛

۲- اصدار فرامین در مورد تشکیلات و صلاحیت محاکم و آغاز کار روی قانون تشکیلات اساسی در خلال مدت کمتر از یکسال؛

۳- تشکیل کمیسیون مستقل انتخابات؛

۴- انجام اصلاحات لازم به منظور تنظیم بهتر امور اجرایی و قضایی؛

۵- اتخاذ تدابیر لازم جهت آماده ساختن زمینه برای تطبیق احکام این قانون اساسی؛

**مادۀ یکصد و شصتم:**

اولین رئیس جمهور منتخب، سی روز بعد از اعلام نتایج انتخابات، مطابق به احکام این قانون اساسی به کار آغاز می کند.

هر اړخيزې هڅې کېږي چې د جمهور رئيس او ملي شورا انتخابات په يوه وخت کې تر سره شي.

کوشش همه جانبه صورت می گيرد تا اولين انتخابات رئيس جمهور و شورای ملی با هم در يک وقت صورت بگيرد.

د ملي شورى واکونه د هغې د تأسيس تر مودې پورې پدې اساسي قانون کې حکومت ته سپارل کېږي او مؤقته ستره محکمه د جمهور رئيس په فرمان جوړېږي.

صلاحيت های شورای ملی مندرج در اين قانون اساسی تا زمان تأسيس اين شوری به حکومت تفويض می شود و ستره محکمۀ مؤقت به فرمان رئيس جمهور تشکيل می گردد.

**يوسلو يوشپيتمه ماده:**

ملي شورى له تأسيس سره سم خپل واکونه او وظايف ددې اساسي قانون د حکمونو مطابق عملي کوي.

**مادۀ يکصد و شصت و يکم :**

شورای ملی، وظايف و صلاحيت های خود را به مجرد تأسيس، مطابق به احکام اين قانون اساسی، اعما ل می کنند.

د ملي شورى له لومړنۍ غونډې وروسته د دېرشو ورځو په موده کې حکومت او ستره محکمه ددې اساسي قانون له حکمونو سره سم تشکيلېږي.

بعد از داير شدن اولين جلسه شورای ملی، در خلال مدت سی روز، حکومت و ستره محکمه مطابق به احکام اين قانون اساسی تشکيل می گردند.

د افغانستان د انتقالی اسلامی دولت رئيس تر هغه وخته پورې وظيفه سرته رسوي چې منتخب جمهور رئيس په کار پيل نه وي کړی.

رئيس دولت انتقالی اسلامی افغانستان تا زمانيکه رئيس جمهور منتخب به کار آغاز کند اجرای وظيفه می نمايد.

ددې اساسي قانون د يوسلو نهه پنځوسمې مادې د څلورمې فقرې د حکم په رعايت، د دولت اجرايي او

ارگانهای اجرايی و قضايی دولت با رعايت حکم فقرۀ چهارم مادۀ يکصد و پنجاه و نهم اين

قضايي ارگانونه د حکومت او سترې محکمې تر تشکيل پورې خپلو وظايفو ته ادامه ورکوي.

هغه تقنيني فرمانونه چې دمؤقتې دورې له پيل څخه وروسته نافذ شوي دي د ملي شورى لومړنۍ غونډې ته راجع کيږي.

دا فرامين تر هغه وخته پورې چې د ملي شورى له خوا لغوه شوي نه وي نافذ ګڼل کيږي.

**يوسلو دوه شپيتمه ماده:**

دا اساسي قانون د لويې جرگې له تصويب څخه وروسته نافذ او د افغانستان د انتقالي اسلامی دولت د رئيس له خوا توشيح او اعلاميږي.

په نافذيدو سره يې ددې اساسي قانون له حکمونو مغاير قوانين او تقنيني فرمانونه لغوه کيږي.

قانون اساسی، الی تشکيل حکومت و ستره محکمه به وظايف خود ادامه ميدهند.

فرامين تقنينی که از آغاز دورۀ مؤقت به بعد نافذ گرديده است به اولين جلسه شورای ملی ارجاع می گردند.

اين فرامين تا زمانيکه از طرف شورای ملی لغو نگرديده باشند نافذ می باشند.

**مادۀ يکصد و شصت و دوم:**

اين قانون اساسی از تاريخ تصويب لويه جرگه نافذ و از طرف رئيس دولت انتقالی اسلامی افغانستان توشيح و اعلام ميگردد.

با نفاذ اين قانون اساسی، قوانين و فرامين تقنينی مغاير احکام آن ملغی می باشد.